# بسم الله الرحمن الرحیم

## د کتاب ځانګړنې


نوم: اندیال خوشال

لیکوال: محمد اسمعیل یون

خپرندوی: یون کلتوري یون

لیککال: ۱۳۸۰ل

چاپکال: ۱۳۸۷ل

چاپشمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

د لیکوال

پرله پسې نومره: (۲۱)

د خپرندوی

پرله پسې نومره: (۲۱)

کمپوزر: ضیاالرحمن ضیا

# نیولیک

سرلیک مخ

# سریزه

له ۱۳۷۱ څخه تر ۱۳۸۰ ل کال پورې په کابل پوهنتون، پښتو څانګه کې پر تدریسي چارو بوخت وم، په څو سمسترونو کې د خوشال پېژندنې مضمون د تدریس چارې ماته راسپارل شوې وې، خو د یادو کلونو په ترڅ کې دا مضمون چې په دوو سمسترونو کې تدریسېده، په متواتر ډول ماته نه و راسپارل شوی، نو ځکه خو د یو منظم تدریسي کتاب د لیکلو چارې برابرې نه شوې. ما د تدریس پر مهال اکثره د خوشال بابا په اړه له متفرقه اثارو، د بابا له خپلو اثارو او د نورو استادانو له هغو لکچرنوټونو څخه ګټه اخیسته، چې تر دې دمخه لیکل شوي وو او دا مهال زموږ په واک کې وو. یاد کلونه هغه مهال و، چې د بېلابېلو جګړو او نورو ډول ډول بندیزونو له امله پوهنتون لکه چې پخوا و او یا اوس دی، هسې او داسې نه و، نږدې ځلورنیم کلونه پوهنتون په مهاجرت او نږدې نور پنځه کلونه یې په بندیزونو کې تېر کړل. خو هغه وخت، کله چې هم د تدریس زمینه برابره شوې، له ما سره د خپل هر تدریسي مضمون لپاره د یوه تدریسي اثر د رامنځته کېدو هیله پیاوړې شوې

ده، د خوشال پېژندنې مضمون د تدریس پر مهال ماته دا ځرګنده شوه چې محصلین د خوشال د ژوندانه او مبارزو ترڅنګ د هغه فکري نړۍ لید ته هم زیات لېوال دي. د ۱۳۷۹ل کال په لومړیو کې ما د خپلې علمي ترفیع (پوهنملۍ علمي رتبې) لپاره د (خوشال اندو ژوند ته یوه لنډه کتنه) تر عنوان لاندې موضوع ثبت کړه. د پوهنتوني ترفیعاتو له قانون سره سم د یو کال په موده کې باید د ترفیع اثر بشپړ شي. د هغه وخت د حالاتو، ستونزو، بوختیاوو او تنګسیاوو په پام کې نیولو سره مې کله کله د ترفیع پر دې ټاکلې موضوع هم کار کاوه، نو کله چې د ترفیع ټاکلی وخت راورسېد، دا اثر هم د ترفیعاتو له غوښتنو سره سم بشپړ شو. د علمي ترفیع په توګه د دې اثر د ټاکنې پر مهال، زما هدف دا و چې دا اثر تر ترفیع وروسته د یوه تدریسي او یا هم د یوه مرستندوی تدریسي اثر په توګه محصلینو ته وړاندې کړم، د تدریس په بهیر کې د دې اثر اډانه او منځپانګه ورو ورو پسې بډایه او بیا به یې وروسته د یوه مناسب تدریسي کتاب په توګه چاپ کړم، خو د تېرو کلونو په بهیر کې ماته د ګڼو نورو عواملو او بوختیاوو له امله

ددې زمينه برابره نه شوه، چې يا پر دې اثر نور كار وكړم او نه هم د تدريس په بهير كې ماته د خوشال پېژندنې مضمون را په برخه شي، چې په عملي ډگر كې ددې اثر نيمگړتيا پوره او كره كړم او د بشپړتيا لپاره يې كار وكړم، نو په دې خاطر نږدې اته كلونه دا اثر همداسې پاتې شو. اوس ځينې هغه ناچاپ كتابونه چې ما په دې اثر كې معرفي كړي و، چاپ شوي هم دي، لكه د سرمحقق عبدالله بختاني خدمتگار (خوشال خان خټک او څو نور فرهنگيالي خټک) او د مېرمن خديجه فيروزالدين (د خوشال ژوند او مبارزه)، سربېره پر دې سرمحقق زلمى هېوادمل د ((ننگيالى د زمانې)) په نامه يو اثر چې د خوشال پېژندنې په برخه كې يو ډېر پراخ، هراړخيز او شارح اثر گڼل كېږي او تر دې دمخه د بابا په اړه نورو اثارو ته يې هم په كې اشاره كړې، ليكلى او چاپ كړى دى. له دې اثر څخه د كابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو پوهنځي د ۱۳۸۲او ۸۷ كلونو د ماسترۍ پروگرام د محصلينو لپاره د خوشال پېژندنې مضمون د يوه تدريسي كتاب په توگه هم گټه پورته كېده. دغه راز په تېرو څو كلونو كې د بابا د فكر او ژوند په اړه نورې په لسگونو ليكنې هم

شوي او د بابا د ژوند د څلورسومې کليزې په وياړ په جرمني کې د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې له خوا يو نړيوال سيمينار هم جوړ شوی و او د بابا په اړه ځينې نور اثار هم چاپ شوي دي.

په دې شپو ورځو کې زه غواړم خپلې تېرې ليکنې او کړی کار يو ځل بيا له نظره تېر او ځينې ليکنې چاپ کړم، نو ( د خوشال اند و ژوند ته يوه کتنه ) اثر مې هم په دې لړ کې، د علمي ترفيع د يوې ټايپي نسخې له مخې کمپوز ته برابر کړ. دا اثر مې په نوې بڼه کمپوز کړ، په متن کې مې ګوتې ونه وهلې او د هغه وخت د شرايطو د يوه محصول اثر په توګه مې هماغسې پرېښود، چاپ مې ورته ځکه مناسب وګاڼه چې د خوشال بابا په باب چې هر څومره اثر وليکل شي بيا به هم کم وي، د خوشال بابا په جامع فکر کې داسې څه شته چې هر څوک ترې خپل خپل تعبير واخلي او يا هم بابا هر چاته د هغه د ذوق مطابق يو فکر ډالۍ کړي. د چاپ بله اړتيا مې دا وګڼله چې لا اوس هم د ژبو او ادبياتو پوهنځيو د پښتو څانګې ليسانس دورې ته د خوشال پېژندنې د يوه بشپړ تدريسي کتاب اړتيا ده، نو که دا اثر لږ تر لږه د يوه

مرستندوی درسي اثر په توګه کار وکړي، زما یو هدف به ترلاسه شوی وي.

د تدریس په بهیر کې کېدی شي دا اثر بشپړ او د محصلینو اړتیا له دې اړخه تر یوه حده پوره کړي. نور نو خوشال داسې یو څوک نه دی چې څوک دې هغه په یو کتابګوټي، کتاب او یا هم څو کتابو، تشریح کړي او د هغه د فکر هر ژور لید ته دې ځان ورسوي، هر چا تر خپلې وسې د بابا اندوژوند ته یوه کتنه کړې، دا لړۍ به روانه وي او دا هم د همغو کتنو په لړۍ کې یوه کتنه ده.

(( د خوشال بابا اندوژوند ته یوه کتنه )) څخه مې (اندیال خوشال) ته ځکه د اثر نوم ور بدل کړ چې د اندیال، (مفکر) خوشال د فکر څېړنې ته لا ډېره اړتیا ده.

سره له دې چې د بابا د شخصي، ټولنیز او سیاسي ژوندانه د هر ډګر څېړنه موږ ته د ژوند او روزګار ډېرې تجربې را په برخه کوي او دا برخه نورې نورې څېړنې ته هم اړتیا لري، په تېره بیا دا چې دا تجربې تراوسه پورې راغځېږي او تکرارېږي او موږ باید له هغو څخه پند واخلو، خو د بابا فکر داسې دی، چې دومره، بکر، تازه او نایاب دی

چې د زمانې پوړۍ او ګردونه یې ځلا او ښکلا، موثریت او جذابیت کمولای نه شي، موږ د بابا له فکر څخه نه یوازې د افغان ملت د یو معمار او بنسټګر عنصر په توګه کار اخیستلای شو، بلکې د بابا فکر د بشري نړۍ د سوکالۍ لپاره داسې یو ځلند مشعل دی چې د نړۍ د هر وګړي ذهن او فکر روښانولای شي. د بابا په تفکر کې داسې ستر مضمونونه، رازونه او ګنجونه پټ دي چې هغه جغرافیایي او موسمي بریدونه نه پېژني او ((انسان)) د ((انسان)) په توګه ورڅخه ګټه اخیستلای شي، نو ځکه خو زه د یوه وړاندیز په توګه ټینګار کوم چې زموږ د اندیال (مفکر) بابا د فکر خزانه باید لا وپلټل شي او لا وشنل شي.

د همداسې ارمان د پوره کېدو په هیله

پوهندوی محمد اسمعیل یون

ارګ- د جمهوري ریاست ودانۍ، کابل- افغانستان

۱۳۸۷ل کال

# لومړی څپرکی

## د خوشال بابا پېژندګلوي

**الف- ژوند:** خوشال خان پر (۱۰۲۲) هـ ق کال چې لـه (۱۶۱۳ میلادي کال) سره سمون خوري، د اکوړي په سرای کې زېږېدلی دی. خپله خوشال خان هم همدا نېټه په خپل یو بیت کې ثبت او د هغې یادونه یې کړې ده:

د هجرت زر دوه ویشت سن و
چې زه راغلـم پـه جهـان

خوشال خان د شهبازخان زوی، د یحیی خان لمسی او د ملک اکوړي کړوسی و. خوشال پـه خپلـه یـوه قصیده کې خپل غـور نیکه(ملک اکوړي) پورې خپله پېژندنه داسې کړې ده:

زه خوشال د شهباز خان یم — چې تورزن یم کان په کان
شهبازخان د یحیی خان — چې بل نه و هسې ځوان
یحیی خان د اکوړي و — چې په توره شو (سلطان)
د اکبر پادشاه په دور — شو دخپل ولس تورخان
د هجرت زر دوه ویشت سن و — چې زه راغلم په جهان
د هغه دور بادشاه و — قدردان شاه جهان
د پلار ځای و ما راکړ — په ولس شوم حکمران(۱)

---

(۱)- د خوشال خټک کلیات لومړی ټوک، د افغانستان اکاډمی ۱۳۵۸ل کال لیندی، د محمد صدیق روهي له خوا د خوشال خان خټک پېژندګلوي، نهه ویشتم مخ.

خو نسبنامه چې د خوشال بل منثور اثر دی او لومړی ځل افضل خان په تاریخ مرصع کې ځی کړی او بیا په مستقل ډول هم چاپ شوی دی، خوشال خپله پېژندګلوي په ترتیب سره په (شلم) پښت خرښبون بابا ، ته رسولې ده.

خوشال په نسبنامه کې وایي:

(( خوشال خان د شهباز خان، شهبازخان د یحیی خان، یحیی خان دملک اکوړي، ملک اکوړ د درویش چې مشهور په چنجو دی، چنجو د تمن، تمن د حسن، حسن د شیخ علي، شیخ علي د عطا ، عطا د بټي، بټي د انو ، انو د برګویټ، برګویټ د تري، تري د تورمان، تورمان د لقمان چې مشهور په خټک دی، لقمان د ککي، ککی د کرلاڼ، کرلاڼ زوی د هوني دی او هوني داخل په اولاد د سړبن دی چې اولاد د شرکبون دی.)) [1]

دا د خوشال د زېږېدو او اصل و نسب په باب په خپله د خوشال څرګندونې وې اوس راځو د خوشال ژوند پېښو ته:

ب- ژوند پېښې: خوشال بابا څو اړخیز شخصیت و؛ هم شاعر و، هم لیکوال، هم تورزن و، هم توریال و، هم سیاستپوه و، هم سیاستوال، هم ټولنپوه و، هم رنځپوه، هم عالم و، هم مارشال، هم ښکاري و، هم فلسفي، هم ټبر پوه و، هم ملتپال، خو لنډه دا چې هر څه و او ډېر زیات انساني ارزښتونه، صفتونه

[1] نسبنامه د خوشال خان خټک او افضل خان، د حبیب الله رفیع سریزه، سمون او سپړنه ۱۳۷۸ل کال، ۳-۲۳مخونه.

او هنرونه په کې راټول شوي وو. خوشال خان د ژوند د هر ډگر د مبارز په توگه په ژوند کې له زیاتو ستونزو، پېښو او کړاوونو سره مخامخ شوی و. دا پېښې اکثره ده په خپله هم په خپلو لیکنو کې ځای کړې او نورو لیکوالو او خوشالپوهانو هم د هغو یادون کړی او هغه یې ثبت کړې دي.

موږ به دلته د همدغو ثبت شویو پېښو لنډیز را واخلو. استاد محمد اصف صمیم په لومړي گام کې په خپله د خوشال او په دویم گام کې د ځینو نورو لیکوالو اثار په ډېر دقت څېړلي او د خوشال ژوند پېښې یې گام پر گام تعقیب کړې دي. دا پېښې چې د تاریخي تسلسل له مخې څېړل شوي، دلته یې په ترتیب سره وړاندې کوو:

* ۱۰۲۸ق (۱۲۱۸ع):

خوشال شپږ کلن و چې په لنډي سیند کې لاهو (ډوب) شو.

* (۱۰۳۰ق، (۱۲۲۰ع):

اته کلن و چې له څپر نه پرې کاڼی راپرېوته او سخت ژوبل شو.

* ۱۰۳۵ ق (۱۲۲۵ع):

په هغه برید کې له خپل پلار (شهباز) سره ملگری و، چې د باکو خان یوسفزي په مشرۍ پر خټکو وشو.

* ۱۰۴۰ ق (۱۲۳۰ ع):

لومړی واده یې له توتیا (د اشرف خان له مور) سره وشو، د واده پر ورځ د سختې تبې له امله خسر کره هم د تګ نه و، ناوې یې نیا (قذیفې ادې) راوسته، د خان دا تبه د ولس ورځې اوږده شوه.

* ۱۰۴۰ ق (۱۲۳۰ ع جون- جولای):

د واده پر ورځ یې دتبې له امله مور ته چا وویل چې برستن پرې ټینګه کړي چې خولې شي، برستن یې پرې ټینګه کړه، ښځې پرې کېناستې، ساه یې تنګه شوه، هلاکت ته نږدې شو، بې حاله بې ساه پروت و، ژړا انګولا شوه خو ساه په کې وغوړېده.

* ۱۰۴۲ ق (۱۲۳۲ع):

په شل کلنۍ کې یې په شاعرۍ لاس پورې کړ لومړی شعر یې دا ګڼل کېږي:

عـقـل سـل د مصلحت بند ونه جوړ کا
چې د عشق سیلاب پرې راشي واړه نوړ کا

* ۱۰۴۲ق (۱۲۳۲ع):

پر عیسی خېلو یې برید وکړ.

۱۰۴۴ق رمضان ۹ (۱۲۳۵ع ۱۷ مارچ):

اشرف خان زوی یې وزیږېد.

* ۱۰۵۰ ربیع الثاني ۱۷ (۱۲۴۰ ع جولای):

په تاراګړ کې د شاه جهان د زوی مراد بخش له دولس زریز لښکر سره ملګری شو او د مغولي حکومت د مخالفو ځواکونو په ځپلو کې يې لوی لاس و.

✴**۱۰۵۰** ق د شوال لومړی (**۱۶۴۱** ع جنوري):

پلار يې له یوسفزیو سره په جګړه کې سخت ژوبل شو او له همغه ټپ نه څو ورځې وروسته مړ شو.

خان وايي:

سن د هجر زر پنځوس
چې شهید شه شهباز خان

✴**۱۰۵۰** شوال **۵** جمعه (**۱۶۴۱** ع جنوري):

خان د ختکو مشر شو.

✴**۱۰۵۰** ق، (**۱۶۴۰**ع):

له شیخ رحمکار (کاکا صاحب) سره تر ملاقات او دعا اخیستو وروسته يې لښکر تیار کړ او د یوسفزیو پر سیمه يې یرغل وکړ او بری يې وګاټه او د خپل پلار تر بدل اخیستو وروسته بریالی کور ته راستون شو.

✴ **۱۰۵۰** ق ذیقعده (**۱۶۴۱**ع):

پر یوسفزیو باندې تر بري وروسته ورته شاه جهان د یوه فرمان په ترڅ کې د شهبازخان رسمي او قومي مقام وسپاره.

✱ **۱۰۵۰** ق محرم شپږمه (**۱۶۴۲**ع اپریل **۷**):

سعادت خان زوی یې وزېږېد چې خان یې د زوکړې ماده په ((غازي دل)) کې رانغښتې ده.

✱ **۱۰۵۲**ق (**۱۶۴۲**ع):

د کواټ د خټکو په شمال کې یې په ((رېسبې)) کې د شاه جهان له مشر زوی دارالشکوه سره وکتل چې د ایرانیانو د مقابلې لپاره (کندهار) ته روان و.

✱ **۱۰۵۲**ق (**۱۶۴۲**ع):

د شاه جهان زوی دارالشکوه له ((محال)) نه بې برخې کړ.

✱ **۱۰۵۳** ربیع الاول یوولسمه (**۱۶۴۳** جولای دویمه):

بهرام خان ورکړه وزېږېد، خان یې د زوکړې ماده (( بخت بابا آمد )) ویلې ده.

✱ **۱۰۵۵**ق/ ذوالحجه/ لومړۍ (**۱۶۴۵**/ جنوري **۲۷**):

د شاه جهان د کشر زوی مراد بخش په هغه لښکر کې دویم ځل ملګری شو چې د بلخ او بدخشان ماموریت ته د تګ په لړ کې پېښور ته راغی.

✱ **۱۰۵۵** ق ( **۱۶۴۵**ع):

پر دغه کال يې دا قصيده وويله:

د ډهلي د ښهرښه شان او شوکت و
لور په لوري ښکلي ښکلي عمارت و
که ددې ويلو حال له مانه غواړې
په حساب کې واوره کال د ((قرشت و))
ابتدا ددې بيان په نمازپښين وه
د ماښام په وخت يې شوی نهايت و

✴ **۱۰۵۵** ق (**۱۲۴۵**ع):
لومړی ځل يې د بلخ او بدخشان په مهم د (اصالت خان) تر مشرۍ لاندې برخه واخيسته.

✴ (**۱۰۵۶** ربيع الثاني **۲۷** ( **۱۲۴۶** جون):
له خپلو پليو (پياده) لښکريانو سره اصالت خان پنجشېر ته ورغی.

✴ **۱۰۵۶** جمادي الاولی **۳** - **۴** ( **۱۲۴۵** جون وروستۍ):

تر دغه وخته يې د بهادرخان داودزي او اصالت تر مشرۍ لاندې په بلخ او بدخشان کې د ستاينې وړ خدمتونه وکړل.

✷ **۱۰۵۲** جمادي الاولی **۱۵** (**۱۲۴۵** جون وروستۍ):

د بلخ د مهم په لړ کې نهرين ( دکندوز په جنوب کې ) نه نيلاب ته لاړ. پر **۱۰۵۲** د افغانستان او تاجکستان پر پوله پرتې سيمې حضرت امام صاحب ته لاړ.

✷ **۱۰۵۸** ق ( **۱۲۴۷**ع ):

عابدخان ورکره وزېږېده چې خان يې تاريخ (( عابدخاني زلی رسيد )) ويلی دی.

✷ **۱۰۵۹** وری دولسمه ( مارچ- اپريل **۱۲۴۸**ع ):

دغه قصيده يې وويله:

چې موسم مې د ګلونو د ګلزار شي
نرم نرم ترشح په مرغزار شي
زر اته پنځوس کلونه د هجرت وو
د نوروز په دولسم چې دا ګفتار شي.

✷ **۱۰۵۹** صفره وروستۍ (**۱۲۴۸**ع د اپريل دويمه):

له اټک نه پورېوت او د میرزا ابوالحسن ( اصف خان ) د یوې ښکلې ماڼۍ او باغونو د زړه راښکونکو منظرو په باب یې یو اوږد نظم وو ایه.

✷ ۱۰۵۹ ق ( ۱۶۴۸ع ):

شاه جهان د یوسفزیو سردار کړ.

✷ ۱۰۵۹ق (۱۶۴۸ع ):

دارالشکوه ترې منصب او سرداري واخیستل.

✷ ۱۰۵۹ق ( ۱۶۴۸ع ):

پر دغه کال چې شاه جهان له ایرانیانو څخه دکندهار د نیولو په نیت د مهم د انتظام په لړ کې کابل ته، ته او پر اباسین پورېوت، خان یې هرکلی وکړ او تر (ډکې ) پورې ورسره ملګری لاړ بیا وروسته کابل ته هم ورغی او هملته ورته شاه جهان د یوسفزیو د ملک انتظام وسپاره.

✷ ۱۰۶۰ محرم (۱۶۴۹ع ):

نظام زوی یې وزېږېده چې خان یې د زوکړې دا تاریخ وو ایه: (( نظام کل وجود )).

✷ ۱۰۶۱ق د صفرې ۱۳مه (۱۶۵۵ع ):

ظفر زوی یې وزېږېد چې خان یې د زوکړې ماده ((کل ریاض )) ویلې ده.

✷ ۱۰۶۲ق جمادی الاولی (۱۶۵۲ع ):

د خان دوه زامن سکندرخان او کمال خان پر همدغه کال وژبړېدل.

✴ ۱۰۲۲ق، (۱۷۵۲ع):

دا نظم يې پر همدغه کال وو ايه.

کله ما وته ويل کړې چې خدمت کړه
په خدمت کې دل نشين د شاه جهان شه
حق نا حق خونونه کړه د مسلمانو
په هر شان يې خواروه د دوی حرمان شه.

✴ ۱۰۲۲ق رجب ۲۴ (۱۷۵۲ع جون جمعه):

د خان مرشد حضرت شيخ رحمکار (کاکا صاحب) د اتيا و کلونو په عمر، د جمعې د خطبې پر وخت وفات شو او مابنام يې جنازه خاورو ته سپارل کېده، خان يې هم د جنازې د بازو او چتولو نېکمرغي ترلاسه کړه.

✴ ۱۰۲۳-۱۰۲۴ق (۱۷۵۲-۱۷۵۴ع):

دغه يو کلنه موده يې له بنګښو سره په جنګونو تېره شوه.

✴ ۱۰۲۳ق (۱۷۵۲ع):

د عبدالقادر خان زوکړه چې په خپله، نوم يې د تاريخي مادې پرځای پرې ايښی دی.

✱ ۱۰۶۹ ق رمضان ۲۴ (۱۶۵۹ جون):

د اورنګ زېب د دويم ځل تخت کېنې پر وخت خان له دارالشکوه نه د خفګان له امله په پښتونخوا کې د اورنګ زېب ملاتړ وکړ.

✱ ۱۰۷۰ق (۱۶۵۹ع):

د تيرا په مهم ووت او د اورنګزېب دمخالفو ځواکونو تر ځپلو وروسته بېرته خپلې سيمې ته راستون شو.

✱ ۱۰۷۰ق (۱۶۵۹ع):

د جلبۍ پر ميدان يې د دارالشکوه دملګري باکوخان تر ماتولو وروروسته دا بيتونه وويل:

هر څوک دې خپل يون کا   کارغه دی که کوتره
څوک چې خپل هنر بدل کا   خپله چار کاندي اوتره

✱۱۰۷۰ ق (۱۶۵۹ع):

د تيرا تر پېښو وروسته يې يوسفزيو ته ماته ورکړه، په دغه لښکر کې ورسره درې زامن (اشرف خان، بهرام خان او سعادت

خان) هم ملګري وو او اشرف خان په لومړي ځل د پلار تر بولۍ (قوماندې) لاندې په جنګ کې برخه واخیسته.

✷ ۱۰۷۰ رجب ۲ پنجشنبه حمل (۱۶۶۰ع فبروري):

د تیرا له مهم نه بریالی راستون شو، په کواټ کې ورته د بنګښو د مشرانو شېرمحمد خان کواټي مور (بي بي دوره) چې د زوی په غیاب کې د قوم مشره وه، مېلمستیا وکړه.

✷ ۱۰۷۲ ق لړم (۱۶۶۱ اکتوبر نومبر):

خیراباد ته مخامخ یې په اباسین کې بېړۍ د دوو ګټو ترمنځ دوه نیمه شوه، سعادت خان او بهادرخان ورسره وو، یوه تخته پاتې شوه، تخته اوبو ښکته پورته خوځوله، د شپې ناوخته پرې یوه پهره رابرابره شوه او بچ یې کړل.

✷ ۱۰۷۴ د جمادي الثاني نیمايي جمعه (۱۶۶۵ فبروري):

د پېښور دصوبه دار سید امیر خوافي خان په حکم پېښور ته راغی، تر دریو ورځو وروسته یې ونیو، پنځسېرۍ بېړۍ یې وراچولې او تر دوو میاشتو ایسارولو وروسته یې د روژې په نیمایي کې ډهلي ته واستاوه.

✷ ۱۰۷۴ ق جمادی الثاني (۱۶۶۵ فبروري):

دا قصیده یې پر همدغه وخت وویله:

و مغولو ته خبرې په وربوز کړم
سر مې پرېوزه که به سر ورته بیا کوز کړم

* ۱۰۷۴ شعبان (۱۶۶۵ اپریل):
دا قصیده یې ډهلي ته د تګ پر لار وویله:

زمانې لـه ښـو یـارانو نـه مهجـور کـړم
څـه بـلا یـې مبـتلا پـه ډېـر ضـرور کـړم
دا بیـان مـې د غعـد پـه کـال ویلـی
پـه شـعبان چې د لاهـور پـه سیند عبور کړم.

او دا قصیده یې هم همدا وخت وویله چې مقطع یې دا ده:

ما خوشال په خوب دا حال لیدلی نه و
چې به دا د غم بیتونه په پنجاب کښم.

* ۱۰۷۴ ق رمضان نیمایي (۱۶۶۵ع):
په ډیلي کې مغولي دربار ته وروستل شو.

زه هـم پـه وسـط د رمضـان کوچمـال کوچمـال
ورغلـم دربـار تـه زر څلـور اویـا و کـال

* ۱۰۷۴ ق شوال (۱۶۶۵ جون):

مغولي دربار ته د پېښور دصوبه دار سید امیرخان هغه لیک ورغی چې پکې غوښتل شوي وو ؛ خوشحال باید نه په ضمانت خوشې شي او نه په رعایت، ځکه دده خلاصون ګډوډي پیدا کوي.

✶ ۱۰۷۴ ق (**۱۶۶۵** ع):

بختناک زوی یې وزېږېد.

✶ ۱۰۷۴ ق ذیقعده (**۱۶۶۵** جولای):

د رنتهبور له کوټ نه یې اګرې ته بوته.

✶ **۱۰۷۵** ق (**۱۶۶۵**ع):

فراقتنامه یې په رنتهبور کې بشپړه کړه:

دوه سوه شل بیتونه دي یوولس بنده ښه
ما په رنتهبور کې د زړه تاو پرې سړاوه

✶ **۱۰۷۵** ق (**۱۶۶۵**ع):

دا بولله یې پر دغه کال وویله:

یوهسې ستوری وخوت په دا بده زمانه
چې ګز یې د لمبه غوندې تر خوله ځي زبانه
دا کال مې په حساب کې پوره (عین غین هې) و
پخپله به پرې پوه شي چې سړی وي فرزانه.

✶ **۱۰۷۵** دنوي کال ورځ (**۱۶۶۵**ع):

دا بولله يې هم د رنتهبور د ورځو پيدا وار دی:

هغه خدای چې بندي کړی يې خوشال
هم هغه به يې خلاصی کا په هر حال
زر پنځه اويا کلونه د هجرت وو
په اغاز د نوي کال شو دا مقال

* ۱۰۷۲ ق رمضان /لسمه (۱۶۶۲ اپریل):
اشرف خان ته يې له رنتهبور نه دا وصيت نامه وليکله:
(( اووه پرکه وصيت نامه مؤکده په ډېر تاکيد موشحه په مبالغه شديد ، چې فرزند ارجمند ، د اشرف خان واړه فرزندان جميع خواهان، ياران دې په دا عمل وي، عمل دې د هر يوه پرې تل وي، د ما د قيد په حادثه د اولس اووه قسمه عالم داخل دی... ))

* ۱۰۷۲ ق ( ۱۶۶۵ع ):
خان خپله دستارنامه د رنتهبور د اورنګزېب په زندان کې وليکله:
انشاء قطعه يې دا وويله:

داکتاب چې په پښتو خوشال انشاء کړ
پخوا نه دی انشاء کړی پښتانه
که تاريخ يې د انشاء له ما نه غواړې
وايم دا بس دی محنت د بېلتانه

* ۱۰۷۲ ق ذيقعده پنځمه (۱۶۶۲ ع جون):

له رنتهبور نه اګرې ته بوتلل شو او له همغه ځایه بیا خوشې کړای شو.

* ۱۰۷۷ ق رجب لومړی (۱۶۶۷ فبروري):

له زندان نه تر خلاصون وروسته په ډهلي کې نظربند و، ماسخوتن مهال پر آس سپور و، له اسه پرېوت او پښه یې ژوبله شوه.

* ۱۰۷۷ ق رجب څلورمه (۱۶۶۷ فبروري):

له آسه تر پرېوتو درې ورځې وروسته یې دا قصیده وویله:

چې بهتر تر هر نعمت دی
که نعمت دی روغ صورت دی
ما چې دا قصیده ووې
په ډهلي مې اقامت دی
څلورمه د رجب وه
زر اووه اویا هجرت دی.

* ۱۰۷۹ ربیع الاول (۱۶۶۸ع اګست):

فرحت خان زوی یې د هندی مور له ګېډې پیدا شو.

* ۱۰۷۹ ق لومړی خور لسمه (۱۶۶۸ع):

دویم ځل د اورنګزېب منصبدار شو.

✷ ۱۰۷۹ق (۱۶۶۸ع):

له هند نه وطن ته راغی.

✷ ۱۰۷۹ ق (۱۶۶۸ ع):

د لنګر کوټ له جوړولو سره يې مخالفت وکړ.

✷ ۱۰۸۰ ق (۱۶۶۹- ۷۰ع جون):

مهابت خان لنګرکوټ جوړ کړ چې خان ورسره د خپل اختلاف او ناخوښۍ یادونه داسې کوي:

لنګـــر کــوټ مغلـــو ســـاز کـــړ
زه پـــه ننـــګ بیـــا د افغـــان شـــوم
کـــه یوســـف و کـــه منـــدړ و
زه د دواړو نګهبـــــــان شـــــــوم.

✷ ۱۰۸۰ ق (۱۶۶۹ ع):

پر دغه کال کابل ته لاړ او دا غزل یې هم هلته وو ایه:

چې ښه ترویت د خپلې چارې ځیر کړ
ځان مې واړه حبطه په خپل تدبیر کړ
پوره زر اتیا کلونه په کابل کې
دا غزل مې په بیاض باندې تحریر کړ.

✷ ۱۰۸۰ ق ( ۱۶۶۹ ع ):
مشره بي بي (توتيا ګله ) يې پر همد غه کال ومړه.

پــوره زر اتيــا کلونــه دهجــرت وو
چې دمور په خوا مې ومړ مشـر کـور.

✷ ۱۰۸۰ ق صفر (۱۶۶۹ ع جولای):
د پلار د وفات پر د برشم کال يې مور وفات شوه.

چـې د پـلار د مـرګ مـې تېـر شـو پـوره قـرن
د صـفـــرې پــــه مـــياشت ومـــړه زمـا مــور.

✷ ۱۰۸۰ ق صفر (۱۶۷۰ ع جون ):
دابولله يې وويله:

پـه ځـان او پـه جهـان کـې مـا دوه ځيـزه دي وکښلي
پـه ځـان کې دواړه سترګې په جهـان کې واړه کښلي
دوه بهــره دوه مطلــع لــري کــه دا قصــيده ګــورې
زر يــو اتيــا کلونــه پــه صــفر کــې مــا ويلــې.

✷ ۱۰۸۱ شوال وروستی ( ۱۶۷۱ ع مارچ):

دا بولله يې وويله:

نـــا خلــف چـــې حوالـــه کـــړ پـــه تقـــدير
نصـــيحت وربانـــدې نـــه کانـــدي تـــاثير
دشــوال وروســتۍ ورځ کــال د ((غفــا)) دی
مــا چـــې دا شـــپېته بيتونـــه کـــړل تحريـــر.

✷ ۱۰۸۱ ق ذوالحجه (۱۶۷۱ع می ):

له دوه کلنۍ نس ناستې (اسهال) نه روغ شو.

کـــه دعـــا ده کـــه توبـــه ده کـــه دارو
و خوشـــال ختـک تـه خـدای ورکـړه شـفا
پـه دوه کالـه د اسـهال پـه رنـځ اختـه و
تـــرې خلاصـــی پـــه ذوالحجـــه و د غفـــا

✷ ۱۰۸۱ بوکه (دلو) (۱۶۷۱/جنوري- فبروري)

ددې کال د ودانۍ اټکل په دې قطعه کې کوي:

د غفـــا پـــه بوکـــه پرېـــوتې پـــه غرونـــو
تـــر کابلـــه تـــر اټکـــه ســـپينې واورې
شـکر زر بـه درسـت جهـان سـره ګلـزار شـي
د بد کـال پـه سرخو بيـا شـوې تـورې خـاورې.

✷ ۱۰۸۳ ق محرم دويمه (جمع) (۱۶۷۲ع اپريل ۳۰):

دخیبر جنګ په پښتونخوا کې دمغولي صوبه دار محمد امین په حکم وشو او خوشال پکې د یوه محسن په توګه د هغه ملاتړ وکړ، خو پښتنو د ایمل خان مومند او دریا خان اپریدي په مشرۍ ځلو ښت زره مغولي پوځ تس نس کړ.

✶ ۱۰۸۳ ق محرم دریمه /شنبه (۱۶۷۲ ع اپریل می دویمه):

دا قطعه یې د خیبر جنګ یوه لنډه خو ژوره نقشه انځوروي:

دویم د محرم ورځ د شنبې کال د غفج
نه غشي وو نه توري چې مغولو وکړ پج
شینوارو افریدو یو د ډکې خوارو مومندو
روپۍ یې په خروار، یوړې مهران واړه په چج

✶ ۱۰۸۳ ق ربیع الاول لومړۍ (۱۶۷۲ ع جون):

بهرام ورپسې د مغولو په لمسون راواخیسته.

✶ ۱۰۸۳ ق ذي القعده وروستۍ (۱۶۷۳ ع مارچ):

له بهرام سره یې شخړې وشوې چې خان په کې لاسبری و.

✶ ۱۰۸۴ ق محرم نهمه (۱۶۷۳ ع اپریل ۲۷):

خان له نظامپور نه ډمبرې او غربین ته له مغولي پوځ سره دمقابلې لپاره اپریدیو ته د جرګې په نیت ورغی.

✷ ۱۰۸۴ ق محرم یو ولسمه (۱۲۷۳ ع اپریل ۲۹ ):

مغولي پوځ له نظامپوره ولېږل، خان ورپسې د سونیالي پر غاښي وروا وښت، تر یوه پهره جنګ وشو. د دښمن دولس کسه مړه او تر سلو زیات ټپیان شول. د خان لښکر ( خټک او اپریدي ) تېر ماسپښین ګاړو ته کوز شو.

✷ ۱۰۸۴ ق محرم دولسمه (۱۲۷۳ ع می لومړۍ ):

له (ګاړو ) نه د (نیلاب ) پر کلیو ورغی ((توهه ) ) او نور کلي له یوې مخې ووهل شول، د کټروشل دبرش ځوانان ومړل، بند او ولجه هم ډېر شول.

✷ ۱۰۸۴ ق محرم دیارلسمه (۱۲۲۳ می دویمه ):

له نیلاب نه ډمبرې ته روغ رمټ راستون شو.

✷ ۱۰۸۳ ق محرم (۱۲۷۳ ع اپریل می ):

بیا یې له بهرام سره په جګړو کې برى په برخه شو.

✷ ۱۰۸۴ ق محرم څوارلسمه (۱۲۷۳ ع می څلورمه ):

د اپریدیو مخور یې رخصت کړل او د جاروتو تړون لاسلیک شو ، نظام خان او عثماني یې دریاخان ته ولېږل.

✷ ۱۰۸۴ ق صفره اتمه ( ۱۲۷۳ می ۲۲ ):

اشرف خان یې د دریا خان په لیکلې غوښتنه له مغولو سره د روغې جوړې په نیت خیبر ته ولېږه، خو روغه ونه شوه.

✶ ۱۰۸۴ ق ربیع الاول اوومه (۱۲۷۳ ع جون ۲۵):

خان وايي: له بهرام سره مې د مقابلې لپاره ابراهيم کډو راوباله، هغه رډ ځواب راکه چې زما وسه نشته، ته توتکی پرېږده، زه هم يو څو ورځې وروسته درپسې درځم، مقصود يې دا و چې که دی له موږ نه ورک شي، موږ به په خوړه کې له بهرام سره روزګار وکړو، ماته ژړا راغله، مراد خان دميتو او مهمندي ممه خېل وقهرېدل، ويل، مونږ خو خپل سر دخدای رضا، ننګ او د خان د نمک لپاره په ميدان کې اېښی، د جنګ حکم مې ورکړ، دبرش څلوېښت سواره، د بهرام پر لښکر چې په يوه کروه فاصله کې پروت و، ورغلل، د بهرام لښکر وبوږنېد تار په تار شو.

✶ ۱۰۸۴ ق شعبان اوولسمه (۱۲۷۳ نومبر):

پر نوښار باندې بريد د خټکو او اپريديو په مرسته وشو. په دغه بريد کې د پښتنو مقابلې ته اورنګ زېب، شجاعت خان او مهاراجه جسونت سنګهه ورولېږل.

✶ ۱۰۸۴ ق (۱۲۷۳ع):

دا قصيده يې په تخت کوټ کې د استوګنې پر وخت وويله:

پرورده که د مغولو په نمک يم<br>
د اورنګ له جوره هم له غرېوه ډک يم<br>
د افغان په ننګ مې وتړله توره<br>
ننګيالی د زمانې خوشال خټک يم.

دا قصيده يې نظامپور نه د راتلو پر وخت وويله:

د فساد فکر مې نشته خدای حاضر دی
خپل ساعت به تېروم عمر اخر دی
د چا زړه به هسې روغ په دنیا نه وي
د خوشال خټک چې چاود ځنې خاطر دی.

* ۱۰۸۴ ق (۱۲۷۳ع):

په تیرا کې یې له دریاخان، تاتارخان، شابیک خان کواټي او ملک خواس خان سره لویه جرګه وشوه او پر نوښار یې د برید پرېکړه وکړه.

* ۱۰۸۵ ربیع الاول لومړی (۱۲۷۴ ع جون):

له بهرام سره یې بیا په دې جنګ ونښت چې بهرام د مهابت خان په لمسون غوښتل چې خان د چراټ په جنوب کې له توتکي نه وباسي، یانې مهابت خان به د بهرام پر ځای بیا مشري اشرف خان ته ورکړي، خو بهرام بریالی نه شو، البته خان له بهرام سره په ټولو نښتو کې سور مخ و.

* ۱۰۸۵ق/ د محرم وروستۍ ورځې (۱۲۷۴ع):

له خوړې نه د تیرا پر لور وخوځېد، د ربیع الاول پر لومړۍ ورځ د تیرا میدان ته روسېد.

* ۱۰۸۴ ق ربیع الاول ۱۵ (۱۲۷۴ ع جون):

د دریا خان افریدي د ورور تاتارخان فاتحې ته ورغی.

* ۱۰۸۵ ق د جمادی الثاني وروستۍ (۱۲۷۴ع):

په تیرا کې یې څلور میاشتې پوره کېدونکې وې، چې د یوسفزیو د ملکانو (عبدال، طالي او اخترعلي) په بلنه د یوسفزیو پر لوري وخوځېد.

✶ ۱۰۸۵ ق د رجب وروستۍ (۱۶۷۴ع):

رستم ته لاړ او هلته یې په شپږو ورځو کې خپله ۹۱۹ بیته منظومه پښتو بازنامه ولیکله:

په نهه سوه او نولس بیته تم شوه
خاتمه د دې نظم په رستم شوه
زر پنځه اتیا کلونه د هجرت دي
د رجب ورځې اخر شوې نهایت دي
په لړم کې مې شروع بازنامه کړه
په شپږ ورځې مې تمامه په خامه کړه.

✶ ۱۰۸۴ ق ربیع الاول (۱۶۷۴ ع جون):

له خوړې نه د تیرا میدان ته ورسېد:

✶ ۱۰۸۵ د جمادی الثاني وروستۍ (۱۶۷۴ ع اکتوبر):

خان د راز علي او حسن علي په ملګرتیا او د اوښ سورو په بدرګه له تیرا نه یوسفزیو ته روان شو، په بازار کې له ایمل خان سره چې له تیرا نه یوسفزیو ته روان و، مخ شو، خان وايي چې سره کېناستو، خبرې مو سره وکړې، د جاروتو یې راته وویل، خو ما ورته وویل، چې که زه پوهېدلای، چې ته به راځې، نو درته

ایسار شوی به وای، اپریدیو ډېر ستنولم، خو ستون نه شوم، اپریدي مې رخصت کړل، د څڅوبي پر لار د ایمل خان سره راسره ډکې ته راغله، شپه مې هلته تېره کړه، سبا بېرې راغله، پکې پورې وتم، پر مومندو تېرېدو، ټولو ښه پښتونولي راسره کوله، مېلمستیا یې کوله، مومند مې ښه عالم ولید، خصوصاً نظرمومند عجب ځوان و، کمال خان یې ورور و، زما ډېر خوښ شو، ډېر ننګیالی مېړه و، د پنډیالۍ پر لار تر سیند پورې وتو، په ملاګوریو کې مو شپه کړه، د چنده په لار ټوټۍ او د خټکو سیمې ته راغلم.

✶ **۱۰۸۵** ق (**۱۶۷۴**ع):

خپله خاني یې اشرف خان ته وسپارله.

✶ ۱۰۸۶ ق جمادی الاول لومړی (**۱۶۷۵** ع مې):

دمردان په شمال لویدیځ **۲۵** میلي کې، برمول ته لاړ او دا بولله یې وبولله:

بیا له کومه راپیدا شو دا بهار
چې په هر لوري یې ملک کړلو ګلزار
د دربیمې خور اول کال د غفو و
ما چې وې په برمول کې دا اشعار.

✷ ۱۰۸۲ق د لوی اختر ورځ (۱۷۷۴ ع د سمبر):
د ګومبت په جنګ کې چې بنګښو ګټلی و، ژوبل شو، عبدالقادر خان هم ورسره په همدې جنګ کې ټپي شو، خان د دې جنګ انځور داسې ایستلی دی:

همګي ځوانان زما د زړه ارمان دي
پکې ببله د عبدال تانده ځواني وه
د غلیم سره په آس غاړه غړۍ شو
د عبدال د مړنتوب بخره کاني وه.

✷ ۱۰۸۲ق/ دربیمه خور/ جمادي الاول (۱۲۷۵ع اګست):
نظام زوی یې ومړ، چې تاریخي ماده او ویرنه یې خان داسې وویله:

خدایه وبخښې نظام ځای یې جنت کړې
که د پلار په رضا شي ځنې رضا و
په دربیمه خور کې ومړ کال ((غفو)) و
شپږ ویشت کاله یې د عمر وو برنا و

✷✷✷

د نظام د غشي یو برابر نه دي
که خوشال په زړه خوړلي ډېر تاوکه
مګر زړه یې د هاتي وي چې زغمي یې
دا شیتۍ چې د خوشال په زړه شوه لکه.

✷ ۱۰۸۲ درېیمه خور اوومه (**۱۲۷۵** اگست):

ملک عبدال، اختر علي او طالي برول ته ننواتې ورغلل او د هر ډول مرستې لوز او ژمنه یې ورسره وکړه، د سوات د تگ بلنه یې هم ورکړه چې خان وایي: ((زه هم د دوی په مصلحت دایم سوات لره روان یم، هر چې د خدای رضا شي، هغه به وشي))

✷ ۱۰۸۸ محرم (**۱۲۷۲** مارچ):

د مغولي صوبه دار سید امیرخان خوافي د دوستۍ په ویاړ له ځوترې نه پېښور ته د پښتنو او مغولو ترمنځ د سولې راوستو لپاره راغی، د شهزاده معظم شاه عالم هر کلی یې هم وکړ او دا غزله یې هم په پېښور کې وویله:

د بې ننگه پښتنو له غمه ما
لویه پرېښوه ونیوله کمه ما
هاتي ځکه په سرلوڼي توري خاورې
چې خبر کړ د خوشال له غمه ما.

✷ ۱۰۸۸ ق (**۱۲۷۲** ع):

خان ددې کال د سولې او له هنده د شاه عالم د راتگ یادونه داسې کوي:

په دا کال چې شاه عالم راغی له هنده
صلحه وشوه د مغولو د افغان.

✷ ۱۰۸۸ محرم (۱۶۷۷ مارچ):
له امیر خان خوافي سره تر فتح اباده (دجلال اباد په لویدیځ کې) پورې ملګرتیا وکړه.
✷ ۱۰۸۸ق زمری (۱۶۷۷):
دا یې ددغه کال ویلې څلوریزه ده:
سږ کال چې د ((رحمت تم)) دی
باران په هر چرته په غره په سم دی
پس له شپږ میاشتو په چنګابښ شروع شو
په هره ورځې، تر نیم ضیغم[*] دی.

دا بولله یې هم پر همدغه کال وویله:
شپږ اووه میاشتې په هند په خراسان
چرته ونه شه په سم په غره باران
دا سږ کال چې یې تاریخ ((رحمت تم)) دی
په وګړي مبارک دی په هر شان.

---

[*] د زمري یا اسد میاشت

✷ ۱۰۸۸ زمری ۲۹ (۱۲۷۲ ع)
تر شپږ میاشتې و چکالۍ وروسته د مسلسل باران یادونه داسې کوي:

چې باران په جهان وشو پس له یاسه
فتح الباب و په تحویل د سرطان
د اسد تر نویشتمه ورځ په ورځ شي
په باران سره نهال شو درست جهان.

✷ ۱۰۸۸ ق (۱۲۷۲ع):
د خپلو مړو هلکانو (زامنو او لمسو) غم په همدې بولله کې داسې ژاړي:

ډېر زمونږ د خېلخانې هلکان و مړل
داغ د زړه دی ((عبدالله)) د یحیی خان
په ((نیک نام)) پسې که زړه درانۍ چوي
د باکو خاطر خوشال شو په ((کامران))

✷ ۱۰۸۹ ق صفر د حمل دولسمه (۱۲۷۷ ع اپریل):
د ګرانۍ او وچکالۍ یاد په دې قطعه کې داسې کوي:

د نو روز په دولسم
میاشت صفر کال د غفط و
غله ګرانه کښت زبون شو
په عالم نازل خط و

✷ ۱۰۸۹ ق رمضان (۱۲۷۸ ع جون):
فالنامه یې نظم کړه.
✷ ۱۰۸۹ جمادی الاول اوومه (۱۲۷۸ ع جون):
سوات ته لاړ او اووه میاشتې هلته پاتې شو.
✷ ۱۰۸۹ ق د کمکي اختر ورځ (۱۲۷۸ ع فبروري)
د خپل فقهي اثر (فضلنامې) نظمول یې چې په روژه کې یې پیل کړي وو، د اختر پر ورځ پای ته ورسول.

دا سږ کال چې د غفط دی
یو کتاب مې په نمط دی
په روژه کې التیام شه
د اختر په ورځ تمام شه

✷ ۱۰۹۰ق ( ۱۲۷۸ع ):
ددې بې مطلعې بوللې د بوللو کال:

قسمت څو چارې راوکړې
ننداره د درست جهان شوم
نه ګناه نه مې تقصیر و
د بادشاه په بند زندان شوم
اوس زرنوي کال دهجرت دی
چې باني ددې بیان شوم.

✷ (۱۰۹۰ ق رجب دربیمه (۱۲۷۹ ع دسمبر):

د کواټ د ډوډي په جنګ کې يې چې د مغولي لاسپوڅو په لمسون ونښت، د مغولو د پلوي بنګښو لښکرو ته ماته ورکړه، دا سوبه يې داسې انځورلې ده:

د اسد تحويل زر يو نوي رجب و
په دريم د جنګ اغاز شو دا کلام
په غليم باندې دې هسې فتح تل وه
لکه دا فتح چې وشوه والسلام

✱ ۱۰۹۱ ق رمضان د ميزان لومړۍ (۱۶۷۹ ع سپتمبر)
دا قصيده يې وويله:

راشه واوره د داستان
نيک و بد پکې بيان
د اويا کلونو اوس يم
په دا ماه رمضان
کال زر يو نوي هجرت دی
هم تحويل دی د ميزان

دا قصيده يې هم پر همدغه کال په ((نړۍ)) (✱) کې وبولله:

(✱) د يو کلي نوم

چې مې ولیده د خپلو زویو کار
زویه واړه ځګرخون دي د خپل پلار
دهجرت زر سل کلونه نه تري کم
چې نړۍ کې مې اغاز کړه دا اشعار

* ۱۰۹۲ ق جمادی الاول پنځمه (۱۲۸۰ ع - جون):
د اشرف خان پرځای یې بهرام خان ته مشري وسپارله.

* ۱۰۹۲ ق (۱۲۸۰ع):
ددې بې مطلعې بوللې یا قصیدې د بوللو کال:

زما مشران زویه
چې یې کار شو امتحان
زر دوه نوي د هجرت
ګوره څه وکا اسمان

* ۱۰۱۳ق / ۱۲۸۱ع:
دا غزل یې د همدې کال وینا ده:

پارینه چارې چې سړ نه شته خوشاله
دا د سړ چارې به هم نه وي تر کاله
دا سړ کال چې دغفج دی چې غفد شي
امیدوار اوسه له بخته له اقباله

* ۱۰۹۵ ق محرم (۱۲۸۳ دسمبر):
دا بولله یې وبولله:

زه د شعر په کار هېڅ نه يم خوشال
ولې خدای مې کړپه غاړه دا مقال
نوې مياشت د محرم غصه يې کال دی
په غليم مې غصه وورېږه دا کال
خدايه هومره مهلت ورکړې په دنيا کې
چې کاږه کارونه سم کاندي خوشال

* **۱۰۹۵** ق (**۱۲۸۳** ع):

پر دغه کال يې د پښتو اشعارو شمېره څلوېښت زرو ته ورسېده:

* **۱۰۹۵** ق شعبان (**۱۲۸۳** ع):

د برات دلومړۍ شپې د خوب انځور داسې کوي:

شپه د برات وه، يو خوب مې وليده
کال يې ((غصه)) دی هر کور مې ښه ليده
دوه توري ماتې شوې، يوه مې روغه شوه
دويم صمصام مې په رغېده وليده

* ۱۰۹۷ق ( **۱۶۸۵**ع )

ددې کال د ټولنيزې وضعې انځورونه يې په دې بې مطلعې بوللې کې داسې کړې ده:

سـږ کـال چـې دغـواص دی
پـــه هـــر لـــوري دي تبـــڑن
د مـرګ تبـې يـو ځپــر دی
د ژونــــدون تــــبې بــــل ځپــر

د **خپل** درويشت کلن ((بختناک )) زوی د مړينې ياد هم په همدې قصيده کې کوي:

بخـت نـاک پـه دوه هفتــې شــي
تـــر فـانـــي جـهـانــــه ســبر
ژونــــدی و درويشـــت کــــاله
زلـمـــيتوب شـــه بـــاندې زلېـر

* ۱۰۹۸ ق (**۱۶۸۵** ع):

ددې بوللې په ترڅ کې د ۱۰۹۷ کال له وبا نه د خلاصون او د **خپل** يوې مېرمنې د بختناک دمور، د يوه زوی ((بختناک )) او يوه لمسي (سرفراز ) د وير ياد داسې کوي:

د غـــواص د کـــال وبـــا
خـدای یـــې مـه راولـه بیـا
بختنـــاک مـــې پکـــې ومـــړ
مـــور مـــې هـم بـو تـه قضـا
یـــو هلـــک یـــې و راپـــاتې
وروســـــې شـــــه زر فنـــــا
ســـــرفراز د ســـــعادت و
ښـــه لمســـی مـــې و زیبـــا
پـه دا کـال لـه مـا قضـا کـړ
پـــه ارمـــان ارمـــان جـــدا
کـــال حصـــغ شـــو وبـــا لاړه
هـــم عســـرت کـــړه راتـــه شـــا
یـــو خوشـــال دا دعـــا نـــه کـــا
درســـت جهـــان کـــا دا دعـــا

✷ ۱۰۹۸ ق (۱۲۸۲ ع):

پـر دغـه کـال یـې یـو زوی طاهرخـان، مومنـد یـو ختـکو وواژه، (تاریخ مرصع ۱۲۵۱) یـو یـې لمسـی د بهـرام خـان زوی معظم ومړ چې خان یې ویر په دې توګه کړی دی:

مـا د معظـم پـه لیـدو مینـه ماتـه نـه کـړه
څـه د قضـا رنـځ و پـه هفتـه کـې څـه و څـه شـو
دریغـه دریغـه دریغـه کـه یـې مـرګ پـه بدلېده وای
څو به مې پرې ورکړل، ولې مرګ مېلمه د ده شه
ښـه تـاریخ یـې راغـی (بـې بـدل معظـم)
خوشال دده نیکه دی، دنیکه یې داغ پـه زړه شـه

✷ ۱۰۹۹ ق شعبان (۱۶۸۸ ع جولای):
دېوان یې د اپریدیو په چانکوړ کې (د چراټ په جنوب لویدیځ کې) بشپړ شو.

✷ ۱۱۰۰ ق ربیـع الثـاني ۲۸ جمعـه (۱۶۸۹ ع فبـروري) شـلمه د ۱۰۲۸ د کب لومړۍ.

زمـوږ ستر خان خوشال خان خټک اخر تر ۷۸ کاله ستړي او نیمګړي ژوندانه وروسته د ژوند امانت د خپل حقیقي څښتن حضور ته وسپاره. (انا لله و انا الیه راجعون)

خان تر جامې بدلولو لږ دمخه هم د پښتنو بې ننګي په دغو ټکیو ژړله:

پښتانه چې بې ننګي کا څوک یې څه کا
ګورسـتان لـره بـه درومـو لـه ارمانـه.[1]

[1] محمد اصف صمیم، ګام پر ګام له خوشال سره، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه- جرمني، پېښور، ۱۳۷۸ل کال، ۳-۲۳مخونه.

# دویم څپرکی

## د خوشال بابا اثار

خوشال بابا د ستر فکري نبوغ او ژور تخیل خاوند و. له خپلو ګڼو سیاسي او ټولنیزو بوختیاوو سره سره یې یوه شېبه هم قلم او کاغذ له ګوتو لرې نه کړ او له شمېره وتي اثار یې ولیکل.

که موږ د خوشال سیاسي او ټولنیز ژوند وڅېړو او د هغه مبارزې او مصروف ژوند ته نظر وکړو او بیا د هغه لیکلو اثارو ته پام وکړو، نو ویلای شو چې خوشال بابا د نړۍ داسې یو ستر لیکوال دی چې د نړۍ هېڅ لیکوال هم په داسې یو سخت، تنګ او کړکېچن ټولنیز او سیاسي چاپېریال کې دومره اثار نه دي لیکلي.

ختیځپوه میجر راورټي انګریز د بابا د ټولو اثارو شمېر (۲۵۰) عنوانه ښودلی دی. کله چې د بابا نبوغ او تخیل ته ګورو، نو د راورټي خبره له مبالغې ډکه نه برېښي. د بابا د اثارو بله ارزښتمني په دې کې ده چې د ژوند بېلابېلو خواوو ته ځانګړې شوې او په هره خواکې په داسې ژور فکر لیکل شوې چې تر ده دمخه خو یې هېڅ ساری نه و آن تر ده وروسته هم، چا په هغو برخو کې داسې اثار نه دي پنځولي.

ښکار، سیاست، ادب، صحت، سفر، فلسفه، تصوف، عرفان، مبارزه، ښوونه او روزنه، ټولنپوهنه او د ژوند نورې خواوې، ټولې په کې رانغاړل شوې دي. د خوشال بابا ټول لیکل شوي اثار تراوسه پورې لاسته نه دي راغلي، خو د وخت په تېرېدو سره کېدی شي نور اثار يې هم لاسته راشي. موږ به دلته د بابا هغه اثار معرفي کړو چې تراوسه لاسته راغلي او یا يې یوه برخه د څېړونکو تر ګوتو شوې ده:

# الف- د بابا منظوم اثار

## ۱- دېوان خوشال خان خټک:

دا دېوان د ډاکتر ایچ ډبلیو بیلیو په سمون، اوډون او د سلطان بخشي داروغه په اهتمام د پېښور چلخانې په چاپخونه کې پر ۱۸۶۹ یا ۱۸۷۰ کال چاپ شوی دی. (۲۰۸) مخه لري، بشپړ دېوان نه دی، خو د خوشال د کلام د هرې برخې بېلګې لري.

## دېوان خوشال خان خټک:

په ۱۲۸ مخونو کې د لاهور په کریمي چاپخونه کې چاپ شوی دی. د چاپ نېټه یې څرګنده نه ده، خو داسې ښکاري چې تر ۱۹۲۰ کال وروسته چاپ شوی دی.

## دېوان خوشال خان خټک بزبان افغاني و فارسي:

دا د خوشال خان خټک د کلام منتخب دی، چې دوه برخې لري؛ لومړۍ برخه یې ۵۲ مخه لري او دویمه برخه یې ۱۲۸ مخه ده. د دېوان د منتخباتو اهتمام د پېښور د قصه خوانۍ بازار د کتاب سوداګر کهرک سنګهـ لـه خوا شوی دی. پـه دې انتخاب کـې غزلونه، قصیدې، قطعې او څه رباعي هم راغلي دي. دا منتخب د ډاکتر ایچ ډبلیو بیلیو له دېوان څخه راچاڼ شوی او بیا چاپ شوی دی.

### دیوان خوشال ختک بزبان افغاني و فارسي:

د خوشال بابا د کلام دا ټولګه هغه ټولګه ده، چې د سلطان بخش داروغه په اهتمام چاپ شوی و او پر ۱۹۲۹ کال د حاجي عبدالرحمن په غوښتنه د مولانا عبدالمجید افغاني په مقدمه یو ځل بیا په ۲۰۸ مخونو کې چاپ شو.

### د خوشال مرغلرې:

د بابا د کلام دا ټولګه چې غزلونه، قصیدې، قطعې، رباعي او نور شعري شکلونه په کې راغلي، د علامه عبدالحی حبیبي په هڅه او زیار پر ۱۳۱۷ل ۱۹۳۸م کال په کندهار کې چاپ شوې ده، دا ټولګه ۱۱۲۸ مخه لري.

### کلیات خوشال خان ختک:

په دې کتاب کې د خوشال بابا غزلونه، قصیدې، قطعې او نور متفرقه شعرونه راغلي دي. تکړه څېړونکي دوست محمد کامل مومند پرې حاشیه او سریزه لیکلې ده. دا کتاب پر ۱۳۷۱هـ ق ۱۹۵۲م کال د اداره اشاعت سرحد له خوا چاپ شوی او همدا کتاب دویم ځل پر ۱۹۶۰ کال بیا چاپ شوی دی.

### د خوشال خان خټک کلیات لومړی ټوک:

د خوشال بابا د شعرونو دا کلیات پر **۱۹۷۹** (**۱۳۵۷**) کال د بابا د دریو سوه یم تلین په درناوي، د افغانستان د علومو اکاډمۍ له خوا چاپ شوی دی. د بابا (**۹۱۰**) غزلونه په کې خوندي شوي او (**۵۱۹**) مخونو کې چاپ شوی دی. دا کتاب پر **۱۹۸۰** کال بیا چاپ شوی او پر دواړو چاپونو یې ډاکتر ګل محمد نورزي او محمد صدیق روهي سریزې لیکلې دي.

### منتخبات خوشال:

د پېښور پښتو اکېډمي، پر **۱۹۵۲**م کال په **۳۲۰** مخونو کې چاپ کړی دی. سید انورالحق یې په نثر، اردو ژباړه هم کړې ده.

### کلیات خوشال خان خټک:

په دې کتاب کې د بابا غزلونه راغلي دي، شېرشاه ترخوي ترتیب کړی، سریزه یې پرې هم لیکلې ده، د (**۱۹۸۵**) یا (**۱۹۸۲**) کال په پیل کې عظیم پبلشنګ هاوس پېښور کې چاپ کړی دی. د مخونو شمېر یې (**۳۷۲**) دی.

### ارمغان خوشال:

د بابا د شعرونو دا کتاب سید رسول رسا ترتیب کړی او یوه اوږده سریزه یې هم پرې لیکلې ده. دا کلیات تر ټولو لوی دی، چې فضل نامه، بازنامه او سواتنامه نامه هم په کې دي او پر

۱۹۲۴م کال په پېښور کې چاپ شوی دی، د مخونو شمېر يې (۱۱۷۷) دی.

### د خوشال رباعيات:

په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا په ۱۹۷۰م کال چاپ شوی، چې (۲۹۹) مخونه لري.

### ۲- د خوشال خټک کليات دويم ټوک:

دا اثر پر ۱۳۷۰ل کال د افغانستان د علومو اکاډمۍ له خوا په کابل کې خپور شوی او د خوشال بابا يو شمېر داسې غزلونه، قصيدې او نور شعرونه په کې راغلي، چې په لومړي ټوک کې نه شته.

### ۳- بازنامه:

دا کتاب په مثنوي فورم کې ليکل شوی او د ليکلو کال يې ۱۰۸۵هـ ق دی. دا کتاب پر **۱۹۵۳**م کال د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوی او **۲۷** مخونه لري. پوهاند صديق الله رښتين پرې حاشيه ليکلې او سمون يې کړی دی. په کتاب کې د بازونو د روزنې، پالنې او د رنځونو علاج په باب معلومات راغلي دي. دا کتاب دهمېش خليل په حاشيه او سمون پر **۱۹۸۵**م کال د خوشال ريسرچ سيل له خوا هم چاپ شوی دی.

### ۳- سوات نامه:

دا هم د بابا یوه مثنوي ده، چې پر ۱۰۸۲ هـ ق کال لیکل شوې او د سوات د سیمې جغرافیایي، ټولنیز او کلتوري حال په کې بیان شوی دی. دا کتاب دخوشال د درې سوم تلین په مناسبت په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوی دی. استاد عبدالحی حبیبي پرې سریزه لیکلې ده، د پېښور د اسلامیه کالج د انګریزي ژبې پروفیسور شکیل احمد، سوات نامه په انګریزي ژباړلې او حاشیه یې پرې لیکلې ده، چې پېښور پوهنتون ورته پرې د (ایم فل) ډګري ورکړې ده. سواتنامه د همېش خلیل په سریزه پر ۱۹۸۲م کال خوشال ادبي و ثقافتي جرګې اکوړه خټک له خوا چاپ شوې ده. سواتنامه په تاریخ مرصع کې هم راغلې او ارمغان خوشال کې هم چاپ شوې ده.

### ۴- فضل نامه:

دا کتاب هم په مثنوي فورم کې لیکل شوی دی. د لیک نېټه یې ۱۰۸۹هـ ق کال دی. فقهي مسایل په کې څېړل شوي دي. یو څه برخه په کې د طب په باب هم شته. دا کتاب پر ۱۹۵۲م کال د محمد عبدالشکور په سریزه د اداره اشاعت سرحد پېښور له خوا چاپ شوی دی. اصل متن یې (۲۵۰) مخه دی.

**۵- طب نامه:**

دا کتاب هم په لنډ بحر په مثنوي فورم کې لیکل شوی او د بابا د ۲۸۲ تلین په مناسبت په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوی دی. دا کتاب بیا د همېش خلیل په حاشیه، لټون او سمون په پېښور کې خوشال ادبي جرګې اکوړې چاپ کړی دی او بل ځل بیا د میا تقویم الحق کاکاخېل په سمون د خوشال ریسرچ سیل له خوا پر ۱۹۸۵ کال چاپ شوی دی. طب نامه په نظم لیکل شوې او طبي مسایل په کې څېړل شوي دي.

**۶- اخلاق نامه:**

دا هم یوه مثنوي ده چې حمد و نعت، مذهبي او اخلاقي مسایل په کې راغلي دي. دا کتاب لومړی ځل پر ۱۹۸۱م کال د پېښور پوهنتون د پاکستان د مطالعاتو مرکز له خوا په پاکستان مجله کې چاپ شوی دی.

دا اثر (۱۷۲) مخه لري. همېش خلیل یې لټون او سمون کړی. دا کتاب په جلا بڼه، د قامي مکتب پېښور له خوا هم چاپ شوی دی. اخلاقنامه وروستي ځل د حبیب الله رفیع په سریزه، سمون او سپړنو پر ۱۳۸۰ ل کال په ۱۲۷ مخونو کې په لاهور کې چاپ شوې ده.

### ۷- فراق نامه:

دا هم منظوم اثر دی، بنه یې زیاتره د مثنوي ده. د خوشال بابا د زندان د شپو ورځو اثر دی. دا کتاب لومړی ځل پر ۱۹۸۲ کال د پېښور پوهنتون د پاکستان د مطالعاتو مرکز له خوا په پاکستان مجله کې چاپ شوی او بل په ځانګړي ډول د همېش خلیل په سمون، لمنلیکونو هڅه او هاند د قامي مکتبه پېښور له خوا پر ۱۹۸۳ کال چاپ شوی دی.

فراقنامه په کابل کې هم پر ۱۳۶۳ل کال چاپ شوې ده. خو دریم ځل پر ۱۳۸۰ل کال د سرمحقق زلمي هېوادمل په سریزه، سمون او تعلیقاتو د پښتون کور له خوا د (۵۰۰) ټوکو په شمېر په ۲۱۷ مخونو کې چاپ شوې ده.

### ۸- فالنامه:

دا کتاب د فال کتلو او د هغې په پوهې پورې اړه لري. د حبیب الله رفیع په سمون د خوشال ریسرچ سیل له خوا پر ۱۹۸۵ کال چاپ شوې او (۸۲) مخونه لري. دا اثر دویم ځل د همدې لیکوال له خوا د پښتني فرهنګ د ودې او پراختیا ټولنې په لګښت پر ۱۳۸۰ل کال په لاهور کې چاپ شوی دی. دا اثر د مثنوي په فورم کې لیکل شوی دی.

## ۹ - نام حق:

نام حق د خوشال بابا هغه اثر دی چې د فارسي له (پنج گنج) څخه ترجمه شوی دی. خوشال بابا دا ژباړه په **۱۰۲۲**هـ کال کې بشپړ کړې ده. په دې اثر کې ځينې ديني مسايل لکه روژه، لمونځ او د هغو فرايض تشريح شوي دي. دا اثر د همېش **خليل** په سريزه په **۴۰** مخونو کې په پېښور کې پر **۱۹۹۲** کال چاپ شوی دی.

## ب- د بابا منثور اثار

خوشال بابا د خپلو ډېرو منظومو اثارو تر څنګ، ګڼ شمېر منثور اثار هم لري، چې د ژوندانه پر بېلابېلو خواوو رڼا اچوي، دلته يې هغه اثار معرفي کوو چې د زماني له بادونو او ګردونو خوندي پاتې او يا يې څېړونکو او خوشالپوهانو ته څرک معلوم دی:

### ۱- دستار نامه:

د بابا د نثر کتاب دی چې په رنتهبور زندان کې يې د اسارت په ورځو شپو کې ليکلی او لومړی ځل پر ۱۳۷۱ هـ ق، **۱۹۵۲**م کال د اداره اشاعت سرحد پېښور له خوا چاپ شوی دی. عبدالشکور صاحب پرې سريزه ليکلې ، سمندرخان سمندر او دوست محمد کامل مومند يې پېژندنه کړې ده. دا کتاب پر **۱۳۴۵**ل - **۱۹۲۲**م کال په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا هم چاپ شوی، چې پوهاند صديق الله رښتين پرې سريزه ليکلې ده. د پېښور چاپ اصل متن **۲۷۸** مخه او د کابل چاپ **۱۴۵** مخه دی. د دستارنامې اردو ژبې ژباړه طاهر غزنوي کړې ده او پر ۱۹۸۰م کال پښتو اکېډيمۍ پېښور چاپ کړې ده.

**۲- زنځیري یا خط نامه:**

دا د لیک یو ډول دی چې د بابا له کورنۍ سره اړه لري. دا کتاب د حبیب الله رفیع په حاشیه او هڅه د خوشال ریسرچ سیل پېښور له خوا پر **۱۹۸۵** کال په **۱۷۲** مخونو کې چاپ شوی دی.

**۳- هدایه:**

له عربي ژبې څخه فقهي مسایلو په باب د بابا نثري ژباړه ده چې دیني مسایل پکې څېړل شوي دي.

**۴- بیاض:**

په نثر کې د خوشال یو ډېر ښه اثر دی. ځینې تاریخي برخې هم لري، چې افضل ختک په تاریخ مرصع کې نقل کړې دي.

**۵- فرخ نامه:**

د توري او قلم بحث دی چې تر اوسه چاپ شوی نه دی.

**۶- ائینه:**

دا هم یو دیني کتاب دی چې تر اوسه چاپ شوی نه دی.

**۷- ختکنامه:**

د خوشال بابا بل اثر دی چې د ختکو د اصل و نسب په باب معلومات په کې راغلي دي. دا لیکنه په تاریخ مرصع کې هم راغلې او افضل خان ختک هم پرې خپل نظر ورکړی دی. د بابا دا اثر په مستقل ډول پر ۱۳۸۰ل کال د حبیب الله رفیع په سریزه د

پښتني فرهنګ د ودې او پراختيا ټولنې له خوا په لاهور کې چاپ شوی دی. (۳۹) مخه لري.

**۸- نسبنامه:**

نسبنامه د خوشال خان خټک بل اثر دی چې افضل خان خټک په تاريخ مرصع کې راوړی او ځای پر ځای يې خپل نظر او فکر هم په کې ګډ کړی دی. دا اثر په مستقل ډول د حبيب الله رفيع په سريزه، سمون او سپړنه پر ۱۳۸۰ل کال د پښتني فرهنګ د ودې او پراختيا ټولنې له خوا په لاهور کې چاپ شوی او د ټولو مخونو شمېر يې (۲۹) دی. په دې کتاب کې خان د خپلې کورنۍ پېژندنه کړې ده.

**۹- ساعتنامه:**

د خوشال بابا يو بل ډېر کوچنی او منثور اثر ګڼل شوی، چې حبيب الله رفيع پرې سريزه ليکلې او سمون يې کړی. په دې اثر کې د ساعت او وخت او سفر په باب لنډ معلومات راغلي دي. دا اثر له سمون، بشپړتيا او سريزې سره ټول (۲۰) مخه لري او پر ۱۳۸۰ل کال د پښتني فرهنګ د ودې او پراختيا ټولنې له خوا د لاهور په ملت چاپخونه کې چاپ شوی دی.

### ۱۰- هندو کوهنامه:

د خوشال بابا یو منثور یونلیک دی، چې د دده دوو جګړه ییزو سفرونو بیان کوي. ددې یونلیک متن هم له تاریخ مرصع څخه را اخیستل شوی، دا کتاب د پښتني فرهنګ د ودې او پراختیا ټولنې له خوا د لاهور په ملت چاپخونه کې پر ۱۳۸۰ ل کال چاپ شوی او سریزو سره (۲۵) مخه لري.

### ۱۱- وصیتنامه:

د خوشال بابا یوه بله لیکنه ده چې په تاریخ مرصع کې د هغه لمسي افضل خان خټک خوندي کړې ده. دا لیکنه په مستقل ډول د حبیب الله رفیع په سریزه پر ۱۳۸۰ ل کال په لاهور کې په ملت چاپخونه کې چاپ شوې ده. د کتاب لګښت د پښتني فرهنګ د ودې او پراختیا ټولنې له خوا برابر شوی او د سریزو په ګډون یې د مخونو ټول شمېر (۱۷) ته رسېږي. په دې لیکنه کې خوشال بابا خپلو زامنو او لمسو ته له نورو سره د چلند او سلوک په باب نصیحتونه کوي.

# دريیم څپرکی

## د خوشال بابا د اند ځینې خواوې

خوشال بابا د علم او تفکر یو کان دی، هر څوک چې پر خوشال څېړنه کوي، نو دده د فکر ژورلید ته متوجه کېږي، د ژوند یو ډګر هم د بابا د فکر له پلوشو تیاره پاتې شوی نه دی، خو د بابا د فکر د ټولو خواوو څېړنه، کتاب نه، کتابونو ته اړتیا لري، موږ به دلته په ډېر لنډیز او چانېز ډول د بابا د فکر ځینو خواوو ته نغوته وکړو:

### صوفي خوشال

کله چې څوک د خوشال بابا د شعرونو ظاهري ښکلا او خپله د بابا رندانه او شاعرانه مزاج ته ګوري، نو داسې یو شخصیت یې

په ذهن کې تداعي کېږي چې خوشال داسې یو رند ، مست، ازاد
او باغي شاعر دی، چې یوازې د ښکلا په میو مست دی او نور
نو د ژوند د اسرارو تل ته نه دی ښکته شوی او د معرفت په
خوږلنیو کې یې خپل روح نه دی لمبولای، خو کله چې د بابا
د کلام په سمندر کې اوږد سفر وکړي، نو بیا ورته معلومېږي چې
د بابا د فکر په سمندر او د تخیل په اسمان کې د معرفت څومره
مرغلرې او څومره ستوري بلېږي، کله چې موږ د بابا صوفیانه
کلام ته پام کوو ، نو یو داسې بشپړ صوفي زموږ په نظر راځي
چې له عبادت او ریاضیت پرته یې بل هېڅ کار نه دی کړی. هغه د
خدای معرفت د بنده لویه نېکمرغي ګڼي او هغه چا ته چې خدای
پاک دا ځواک ورکړی وي، هغه د خدای خاص خاص بنده ګان
دي. دی وایي که انسان غواړي چې هغه لوی نقاش (خدایؑ)
وپېژني ښه به دا وي چې خپل ځان وپېژني، چې څنګه او چا جوړ
کړی یم، لکه یو انځورګر چې یو انځور جوړ کړي او پر دېوال یې
وځړوي، نو خلک بیا ټول د هغه انځورګر صفتونه پیل کړي ،
دغسې چې خدای(ج) په خپل کرم او پوهې انسان جوړ کړی،
باید موږ متوجه شو او د همدې انسان پېژندنې له لارې خپل رب
او اصلي نقاش وپېژنو. بابا په خپل یو کلام کې وایي:

صورتګر چې ښه صورت په د ېوال ساز کا
کل عالم په صفت زبان د راز کا
د هغه نقاش په صنع نظر نه کا
چې له څه څاڅکي نه دا نقش و طراز کا
سترګې، وروځې، پوزه نور کېږدي په مخ کې
غاښ و شونډې، ژبه، خوله سره پرداز کا
یو سر بل سر په سر جوړ کا دوه غوږونه
چې په دواړو اورېدنه د اواز کا
بند په بند د لاسو ګوتې و بله کېږدي
سر ترپایه درست صورت سره یو راز کا
که څوک زرکتابه وکښي له دې بابه
که په کښل شي زر به نور پسې اغاز کا
هر وېښته چې په صورت باندې لیده شي
که پرې ځیر شې د شناخت ور به درته واز کا
خاص بنده د خدای هغه ګڼه خوشاله
چې د ځان په معرفت یې سرفراز کا[1]

[1] د خوشال خټک کلیات، لومړی ټوک، د علوموا کاډمي، ۱۳۵۸ل کال، ۱مخ

د تصوف ډېر تعریفونه شوي دي، چا ورته د فاضله اخلاقو او چا ورته د رباني عشق حصول ویلی دی، څوک وایي چې له لوی خدای(ج) سره د مانا او معاملې ساتل تصوف دی. شیخ عبدالقادر جیلاني وایي چې د خدای(ج) او بنده ترمنځ چې کوم حجابونه دي د هغو لرې کول تصوف دی، حمزه بابا وایي: ((د انسانیت له عنصر نه د حیوانیت او ملکیت تسلط پورته کول او دا دواړه د انسانیت تابع کول تصوف دی)).

هر صوفي چې کله د تصوف لاره نیسي، نو یو استاد ته اړتیا لري، چې د تصوف په اصطلاح کې ورته شیخ، مرشد او پیر وایي، چې پرته له هغو ورته په دې لاره تګ ډېر ګران او له خطره ډک وي. خوشال بابا هم همداسې یو مرشد درلود، دی د حضرت شیخ رحمکار کاکا مرید و لکه چې وایي:

((طریقت کې مقلد د شیخ رحمکار یم))

او په یو بل ځای کې ترې مرستې غواړي:

د خوشال تکیه په خدای ده بیا په تا ده رحمکاره

د تصوف له مخې که یو انسان د خدای(ج) د ټولو صفاتو هنداره وي، خو یو صفت یې دا هم دی چې هغه مرکزي حیثیت او د نورو ټولو صفتونو لپاره د محور حکم لري او هغه د انسان د تخلیق منشا ده چې مرکزي صفت لري.

په تصوف کې لومړی درجه د فنا فی الشیخ ده او هر کله چې دا فنا حاصله شي نو بیا سالک د فنا فی رسول مرحلې ته تیار شي او له دې مرحلې نه بیا د فنا فی الله او په پای کې بیا د بقا بالله مرتبه حاصلوي، چې د سالک ژوند ومري. خوشال وايي:

زه هاله د عاقبت ناوې قبول کړم
چې یې خپله تمنا ورکړه په مهر

تر هغه چې انسان په خپل فطرت غالب نه شي، هغه پر خپل وجود نه شي واکمنېدلای، د کائیناتو تسخیر خو لا ډېره ګرانه خبره ده.

خوشال وايي:

بیا هاله د یګانګۍ له حاله لاف کړه
ته د غیرو اندېښنې له زړه خارج کړه

***

تري په سل رنګه ګلونه شګفته شي
هر سړی چې خاکساري واخلي ځان خاک کا

***

چې دې زړه هغه به ووینې خوشاله
خو یوه قطره که تېر شي تر درخته

***

تــر مطلوبــه پــورې شــرط د رســېدو دی
کـــه تمامـــه لار پـــه وینـــو شـــي الـــوده
***
نـــور څـــه نـــه شـــته لانـــدې بانـــدې
واړه دی دی چـــــې څـــــه کانـــــدي
***
یـو وهـم کـه څـه دي چې پـه خلکـو بانـدې پـېښ شـو
دنیـا دنیـا هـېڅ نشـته کـه نمـود کـه نـا نمـوده
***
مــخ د یــار لــه خــط و خالــه مســتغني دی
د غنـــي وي هـــر اســـباب لـــه خپلـــه کـــوره

د خوشـال پـه شعرونو کې د تصوف دواړه برخې (وجودي) او (شهودي) تر سترګو کېږي  او د دواړو ښودنه یې کړې ده.

جدايي نشـته وصـال ځینې بعـد وهـم وخیـال دی
لـه هغـه چې هم خانـه وم هم خانه یم لا تراوسـه
هغـه شـان لـه خپلـه یـاره بـې وکیلـه بـې ریبـاره
زه خوشـال چـې یګانـه وم یګانـه یـم لا تراوسـه
***
یـــار مـــې هســـې رنګـــه ځـــای ونیـــو پـــه ســـترګو
چـــې د هـــر لـــوري تـــه ګـــورم واړه دی دی
***

خدای یو هسې فکر راکړ
چې یې ملک راته رڼا کړ
چې په ملک په ملکوت دی
پرې خبر یې زړه زما کړ
په اعلی په اسفل واړه
راښکاره یې هر اشیا کړ
که په نورو توره شپه ده
په خوشال یې سپین سبا کړ

***

یار د ما څه په کور دننه ناست و
زه بې روحه ګرځېدم دده په مرسته

***

یار په هر لوري جلوه کا ورته ګوره
که دې نه دي د لیدلو سترګې پټې

***

که دې سترګې د عرفان شته مبارک شه
د ګلزار په ننداره چې استقلال کړې

***

یو مې بیامونـد په هر څه کې
چې مې وکړ د زړه سیر

***

ذرې ته چې داسې بربښې منوره
که پوهېږې دا بربښنا دې ده له لمره

# شاعر خوشال

د خوشال بابا د ليکوالۍ زياته برخه د هغه شاعري ده، چې ده ورته د خپل ژوند (**۵۸**) کلونه وقف کړي وو. خوشال د خپل ژوند په دې (**۵۸**) کلن ادبي بهير کې تر (**۲۵۰**) عنوانو زيات اثار وليکل، چې زياته برخه يې منظوم اثار وو. بابا په خپل دې منظوم کلام کې د ژوند د بېلابېلو خواو منځپانګه خوندي کړې ده.

خوشال په شل کلنۍ کې پر شعر ويلو پيل کړ او لومړنی شعر يې پر (**۱۰۴۲**ق (**۱۲۳۰**) ميلادي کال وو ايه چې داسې پيلېږي:

**عقل سل د مصلحت بندونه جوړ کا**
**چې د عشق سيلاب پرې راشي واړه نوړ کا**

خوشال بابا د خپلې شاعرۍ له پيله بيا تر پايه پورې په بېلابېلو شعري فورمونو کې شعرونه وليکل چې په هغو کې قصيده، غزل، مستزاد، قطعه، رباعي او نور بېلابېل فورمونه شامل دي.

بابا په پښتو شاعرۍ کې د نوې پښتو شاعرۍ بنسټونه کېښودل، د پښتو د شعر ماڼۍ يې ودانې کړې او کله چې يې

پښتو شاعري پيلوله نو دا ژمنه او وړاندوهنه يې هم ورسره کړې وه چې:

د پښتو ژبه به اوس په آب وتاب شي
ما خوشال چې په پښتو شعر بيان کړ

کله چې خوشال بابا د پښتو شاعرۍ عزم وکړ، نو بيا يې ټول شاعران هم وتلل، د هغو نيمګړتياوو ته يې ګوته ونيوله او دا يې هم وويل چې پښتو شاعري تر ده پخوا په تول تللې نه وه؛ وزن، بحر او عروض يې معلوم نه وو او دا ټول ورته ده جوړ کړل.

يو په حال او په ماضي کې هسې نه و
چې ښکاره يې د خبرو راته خوند کړ
د ميرزا دېوان مې ومانده په ګوډي
مسخره مې ارزاني خويشکي زمند کړ
که دولت و که واصل و که دا نور وو
په خبرو مې د هر يوه ريشخند کړ
کلمې مې ورته سازې کړې د قندو
د وربشو په ډوډۍ به چې يې شخوند کړ
***

کله چې د خوشال بابا شاعري وغوړېده، نو هنګامې يې لور پر لور خورې شوې.

بندوبست د پښتو شعر ما پيدا کړ

ګڼه شعر د پښتو و غير سيال

نه يې وزن نه تقطيع نه يې عروض وو

دوه مصرع يې د ضعيف بحر دوه تال

د غزل يې نه مقطع نه يې مطلع وه

نه صفت نه يې تشبيه نه يې مثال

ګلستان زما د نظم شګفته شو

پرې وهي شيدا بلبله پروبال

ګلدستې يې لور په لورپه ملک خورې شوې

تر کابله تر کشميره تر بنګال

خوشال خټک د خپلې دورې د کلتور او ثقافت يو ځلاند ستوری و او د خپلې زمانې د ډېرو علومو او څانګو په باب يې زيات معلومات په خپله شاعرۍ کې بيان کړي دي. اوس که څوک وغواړي چې د خوشال خټک اشعار ترجمه کړي، نو بايد دايرة المعارف يې تر څنګ وي، ځکه چې د ترجمان لپاره نه يوازې په شاعرۍ، تاريخ، حقوق، اسلامپوهنه او جنګي مهارتونو کې معلومات په کار دي، هغه بايد پر فلسفه، بيولوژي، ښکارپېژندنه او د نورو علومو په څانګه کې هم معلومات ولري. بابا وايي:

درست ديوان مې لکه باغ د علم ګنج دی

په کې هر رنګه ګلونه هر نهال

خوشال بابا سره له دې چې پر عربي، فارسي او ځينو نورو ژبو پوهېده او په پارسي کې خو يې ښه شاعري هم کړې ده، خو د خپل ژور ملي شعور له مخې يې پښتو شاعري ډېره زياته خوښېږي ، نو ځکه خو وايي:

پارسي شعر مې هم زده
سليقه لرم د دواړه
پښتو شعر مې خوښ کړ
هر څوک خپل ګڼي ښاغلی

نو ځکه خو يې بيا د پښتو شاعرۍ عروج ته ملا وتړله او هغه يې ډېره لوړه کړه:

په وزن په مضمون په نزاکت هم په تشبيه کې
پښتو ويل مې عين تر پارسي دي رسولي
***
هر کلام مې واردات دي يا ايهام دي
چې موزون مې په تقطع د بحر بند کړ
په تازه مضمون د پښتو شعر
په معنی مې د شيراز او د خجند کړ

خوشال بابا د شعر يو ناپايه سرچينه لرله چې دده د ځوانۍ له کلونو دا چينه را وخوټېدله او بيا دده د عمر ترپايه پورې

همداسې رنه او بهانده پاتې شوه، د عمر يې لا څو کلونه پاتې وو چې د خپل ديوان بيتونه يې سره حساب کړل او تر (۴۰) زرو پورته شول.

د ديوان مې که بيت بيت سره حساب کړي
تر څلوېښتو زرو به تېر شي په سرِ کال

خوشال بابا د يو اوږ ژبي شاعر او ليکوال په توګه پر خپله ژبه داسې واکمن و چې له کلمو څخه يې شات ونبات جوړولای شول. د ژبې پر جوړښت او د نظم او قافيې پر فن دومره برلاسی او واکمن و چې ډېر تاريخي، طبي، ټولنيز، سياسي او نور مسايل يې د نظم په تارپېيلای شول، ځکه خو يې که فراقنامه هم ليکله، نو په نظم کې يې اچوله، که بازنامه هم، طبنامه او سواتنامه هم داسې او همدارنګه نور بېلابېل منظوم اثار.

لنډه دا چې که موږ د دنيا له هر شاعر سره د خوشال بابا شاعري پرتله کوو، نو څومره مانيزه رنګارنګي چې د بابا په کلام کې خوندي ده، دنړۍ د هېڅ شاعر په کلام کې نه ليدل کېږي. د هغو اکثرو کې يوه مانيزه برخه رانغاړل شوې ده، يا به تصوف وي يا به رزم وي يابه بزم وي او يا به نور څه، خو د بابا په کلام کې دا ټولې رنګارنګۍ شته، نو ځکه خو يو ايراني ليکوال ويلي دي:

(( که چېرې فردوسي په رزمي، حافظ په غنايي او سعدي په تصوفي يا عرفاني برخه کې سره يوځای کړو، نو يو خوشال خټک ځنې جوړېږي. ))

ددې خبرې مانا دا ده چې خوشال داسې يو څو اړخيز شخصيت دی چې يوازې په شاعرۍ کې يې د ژوند څو خواوې رانغاړلي دي او ده د کار او مبارزې اند و ژوند نورې برخې خو لا پرځای پرېږده.

# فلسفي خوشال

کله چې څوک د خوشال څو اړخیز شخصیت مطالعه کوي، نو هر اړخ یې چې مطالعه کوي، په پیل کې ورسره داسې فکر پیدا کېږي، چې خوشال به یوازې په همدې اړخ کې دومره رسېدلی وي او بس. خو کله چې ورته ځیر شي په هره برخه کې د پوره فکر او نظر خاوند دی او خبره یې د کاڼي کرښه ده. د خوشال فلسفي خوا هم همداسې ده، کله چې د خوشال په اشعارو او کلام کې د هغه ژور فلسفي لید ته متوجه کېږو، نو هلته مو یو ستر او ژور فلسفي خوشال تر سترګو کېږي، چې ژوندني مسایل یې تر ریالیستي دایرې اخوا په یو فلسفي نظر څېړلي دي.

د خوشال خان فلسفي اند دومره ژور دی چې (( علامه اقبال د خوشال خټک له اثارو نه ګټه پورته کړې او د خودۍ فلسفه یې د خوشال خان له افکارو نه اخیستې ده چې هېڅوک ترې د انکار کولو مجال نه لري. علامه مرحوم په خپلو اثارو کې د خان بابا افکار د بل مشعل په توګه ګڼلي دي او د خوشال خان دملي وحدت نظریه یې په دې ډول څرګندونه کړه، چې (( باید قبایل د ملت په وحدت کې ورک شي؛ ای ملګریه راشه چې د زړه خبره

درته وکړم، د خوشال خان هغه قبر هم د ځان لپاره خوښ نه دی چې د مغولو د آسونو ګرد پرې پرېوتی وي.))
د فلسفې یو تعریف دا هم دی: ((څه چې د انسان په ماحول او فضا کې موجود وي او حواس یې درک کولای شي، انسان د هغوی په باب فکر کوي او حکم پرې لګوي.))
همدغه فکر او سوچ خوشال بابا ته هم په مخه ورغلی او ویلي یې دي:

ما چې نظر وکړ په ذرات په موجودات
ګول په جهان راغلم ترې به ګول درومم هیهات
یو څادر ترمیان وي فهم پاتې شي له کاره
دا هومره کیسې هومره ادراک د سموات
هېڅ نبي ولي یې درست اسرار موندلی نه دی
لویه کارخانه ده که وګورې کاینات

عقل چې ډېر الوت وکړي او د کاینات د راز په لټون کې خپلې انتها ته ورسېږي، نو له مادیت نه ماورا له هر څیز نه انکاري شي، ځکه چې تر خپل حد نه پورته الوت ممکن نه وي، دلته فلسفه په ټپربدو شي او د انسان خیالات چې هر څه وي دا دي چې کاینات یو بې منعقده څیز دی، په اتفاق سره پیدا شوي دي او په اضطراري ډول لګیا دی کار کوي، هېڅ غایه او مقصد نه

لـري، انسـان د سـارتر پـه وينـا پـه فضـا کـې غورځېـدلی خـو غورځوونکی يې نه شته، نو شايد خوشال خان ته هم دا سوچ ورغلی وي او ويلي يې دي:

دا عالـم ريګ روان دی که يې ګورې
خو هم هسې سره اوړي لاندې باندې

خو انسان د يو څيز تر کتنې او مشاهدې وروسته له هغه څيز څخه انکار کولای نه شي، يانې دا چې هغه شيان چې تر ايجاد دمخه يې نه منل، تر ايجاد وروسته يې مني.

خوشال بابا هم د عقل د الوت په پای کې چې د عقل واګې يې د انسان روح ته حواله کړې، نو د يقين رڼا يې زياته شوه او ويې ويل چې:

دېـــر عـــالـــم زمـــا پـــه يـــاد
راغــــی تېــر شــو لکـــه بـــاد
هـــم دا هـــسې راشـــي تېـــر شـــي
بـــس ځـــای نـــه لـــري استـــاد
عــجـــب لـويـــه کـــارخانه ده
چـــې پيـــدا کـــړه لـــوی اســـتاد

بيا وايي:

هـــر تنـــاب يـــې و دانـــا وتـــه معلـــوم دی
دا خېمـــــه ولاړه نـــــه ده بـــــې تنـــــاب

***

ګــل تــه چــا دا هســې زېـب او حســـن ورکــړ
چــا يــې هســې نــه پــه نــه پــانې پرانســتې

خو د ماورای طبعيت يا ما بعد الطبعيت د مشاهدې لپاره مجاهدې ته ضرورت دی، لکه چې خان وايي:

همېشه ژوندون که غواړې درته وايم
هــمېشه کوه له نفس سره جهاد

خوشال بابا بيا د خدای پېژندنې په فلسفه کې دومره خپل نظر ژور ځغلولای چې په هر څه کې يې د خدای(ج) د نور ننداره کوله او په هر څه کې يې هغه ليده.

په هر څه کې ننداره د هغه مخ کړم
چې له ډېرې پيدا ييه ناپديد شو

حمزه بابا د خوشال بابا پر همدغه يوه بيت، يو کتاب ليکلی او د هغه دا شعر يې له فلسفي او تصوفي نظره څېړلی او شنلی دی. ددې خبرې مانا داده چې خوشال دومره ژور فلسفي او تصوفي ليد لري چې پر يوه بيت يې هم يو کتاب ليکل کېدلای شي.

# کره کتونکی خوشال

لکه څنګه چې مو یادونه وکړه، د خوشال بابا ژور او تېز نظر د ژوند هره خوا او د هنر بېلا بېل ډګرونه په خپل کلام کې رانغاړلي دي، داسې یې کره کتنه، نیوکه او بیا د سمون لاره هم له یاده نه ده ایستلې. خوشال بابا لکه څنګه چې د پښتو ژبې او ادب پلار ګڼل کېږي، داسې په علمي، ټولنیز، ادبي او سیاسي ډګر کې هم یو ستر او ژور کره کتونکی دی.

له یوې هنري ښکارندې (شعر) څخه رانیولې بیا تر یوې لوړې ټولنیزې پېښې او عمل پورې چې هر یو دده په نظر نیمګړی معلوم شوی، هغو ته یې د انتقاد ګوته نیولې او بیا یې د سمون لاره هم ورپه ګوته کړې ده.

خوشال بابا یو زړور کره کتونکی و، نه یې د چا مدح کوله او نه یې ځانستاینې ته اړتیا لرله، خوشال له فکري، اقتصادي او ټولنیز پلوه په داسې یو دریځ کې و، چې د سالم انتقاد لپاره یې وړ صفتونه او ظرفیتونه لرل، نو ځکه خو ده له خپل ځانه نیولې تر خپلو اولادونو، کورنۍ، قبیلې او ټولو پښتنو پورې څه شی چې په کې د انتقاد وړ وو هغه یې څرګند کړي او نیوکه یې پرې کړې، همداسې یې په ادبي او سیاسي برخه کې د سمون او اصلاح لپاره ډېرې نیوکې کړې دي. د خوشال بابا د نیوکې

محتوا ځکه پر خلکو ښه لګېږي چې حقیقتونه ثرګندوي او د رښتیاینې پر بنسټ ولاړه ده.
بابا دومره اخلاقي جرئت لري، چې که په ځان کې یې هم نیمګړتیا وي هغه نه پټوي او په ډاګه یې وایي:

د مغول نمک مې وخوړ شېږ پېړۍ
ما د زرو پکې روغې کړې بیړۍ
رعیت مې یوسفزیه درست خټک وو
په عزت او په حرمت کې یې څه شک و
د مغول لپاره ما توري وهلي
پښتنو به راته کړې ډېرې کنځلي

یادا چې:

چې منصب مې د مغول خوړ یو ملک وم
چې منصب د مغول نه شته اوس ملک یم

خوشال بابا بیا په دویم ګام کې پر خپلو ځینو زامنو او د کورنۍ پر غړو چې دده پر وړاندې په ناحقه راولاړ شوي او یا یې نافرماني کړې او یا هم د خپل ولس پرضد ودرېدلي، سخت انتقادونه کړي او د هغو شخصیتونه یې څېړلي، شنلي او څېرې یې ورته ثرګندې کړې دي:

نا خلف مې حواله کړ په تقدیر
نصیحت وربانــدې نــه کانــدي تــاثیر
خوی خصلت چې ازلي وي نه نورکېږي

پــه ارشــاد او پــه تلقــین د کامــل پیــر
بـد فرزنـد دې خـدای د هېچـا پیـدا نـه کـا
په خصلت یې پلار په ځان دی مور په ویر

یا دا چې:

زمــا زویــه د ننــګ نــه دي غږیتــار دي
پــرې پــوهېږم چــې همــه واړه مــردار دي
نه یې لویه اند ېښنه نه یې لوی کار شته
د مغولـــو وطبـــاخ وتـــه تیـــار دي
د منصـــب د اضـــافو خبـــرې کانـــدي
پــه عــزت، پــه حرمــت کلــه خبــردار دي
اتفــاق، یګــانګي یــې ســره نــه شــته
همګـــي روان پـــه بېلـــه بېلـــه لار دي
نــه د نــوم دي نــه د شــرم نــه د ننــګ دي
اند ېښــنې یــې د نــاکس، د ناســردار دي
شـــکایت لـــه نـــورو مـــه کـــوه خوشـــاله
چې خپل زویه هم په ننګ له تا ویزار دي.

***

چـــې پیـــدا دي همګـــي زمـــا لـــه ځانـــه
کــه پنځــوس دي کــه شــپېته دي داغ د زړه دي

***

یو و پلار نیکه ته نه شو
همګي د مور په شان

***

اشرف سر تر سره نفس اماره دی
په حسد په حماقت کې اواره دی

***

د مور پلار نیکه ته نه دي
دا ناکس دي لابل شان
په ژوندون مې خپل ځای ورکړ
باندې زه شوم مهربان

***

یو څو لا په کې افت شول تر دا میانه
څوک ((بهرام)) غوندې بدبخت بخیل شي

***

چې هېڅ کار نیولی نه شي استوار
په شامت یې خېلخانه شي تار په تار
څوک ((سدو)) غوندې نامراد عبدالزوجه شي
په تنګسه له خپله پلاره شي ویزار
څوک ((مالو)) غوندې((جلو))غوندې

پیدا شي
سراسر واړه نابود او نابکار

***

مرګ د نا اهلو سبا بېګاه غواړم
دعا مې داده الله الله غواړم
زما توبه ده د بهرام له خیره
ده ده له شره امان پناه غواړم

***

زما زړه له چا نه روغ نه دی بهرامه
د هرچا سره مې زیست دی له ناکامه
نور دې نوم زما په زویو کې حساب مه شه
د خوشال ختټک وینا په دا تمامه

***

چې په ځای یې نا قابل زویه خاني کا
د خوشال خاطر په دا پاره پاره دی

لکه څنګه چې خوشال خان پر خپل ځان او هم پر خپلو زامنو نیوکه کوي او نیمګړتیاوې یې رابرڅېره کوي دا سې پر خپلې قبیلې (خټکو) هم نیوکې او انتقادونه لري او د هغو له ځینو عملونو او نیمګړتیاوو څخه هم ناخوښي ښکاره کوي.

لـه ختـﯖکـو نـه مـې هـومره زړه نـاخوښ دی
چــې توبــه د همګــي ختـﯖــک لــه نامــه
د نعمــت پــه قــدر هــېڅ خبــردار نــه دي
نـوم ختـﯖک بـه مـې خـلاص نـه وي لـه انعامـه
ختـﯖــک واړه د دودام دي کــه يــې ګــورې
څـوک بـه څـه غـواړي د خپلـو لـه دودامـه
د وفــا پــه ځــای همــه واړه جفــا ده
چــې بــه ماتــه رسـېده لــه خپلــه قامــه
کـه پـه تـوره ختـﯖک خپـل کـړې ګنـې خپـل شـي
کنـه هـېڅ بـه يـې خپـل نـه کـړې لـه اکرامـه

***

چــې زمــا اختيــار يــې خــوار کــړ
خــدای دې خــوار هغــه ختـﯖــک کــا

***

درســـت ختـﯖـــک زمـــا پـــه دور
نـــامور شــــو پـــــه دوران
کـــه ختـﯖـــک پـــه مځکـــه پـــروت و
پـــاس مـــې يـــوور پـــه اسـمان

***

## تفحص که څوک د خوږ زړونو کاندي
## د خپل قام له لاسه ورک خوشال خټک دی

خوشال بابا د خټکو تر انتقادي دایرې او نیوکې وروسته، پښتانه په خپله انتقادي دایره کې داخل کړي او هغه نیمګړتیاوې چې په پښتنو کې دي هغه یې یوه یوه څېړلې ده. په پښتنو کې به د خوشال بابا غوندې هېڅ داسې بل لوی لیکوال تر سترګو نه شي، چې د بابا په څېر د پښتنو پر رواني چلند او ټولنیز ژوند بلد وي او هغو ته یې په خپلو اثارو کې په دې کچه ځای ورکړی وي. خوشال بابا د خپل فطري بغاوت او ژور فکر له مخې د پښتنو نیمګړتیاوې هم څېړلي او نیوکې یې پرې کړي دي. د خوشال بابا اثار د پښتنو د ژوند هنداره دي، چې د هغوی ښېګڼې او بدګڼې ټولې په کې په ښه روښانه ډول څرګندېږي:

لېوني شول پښتانه په منصبونو
خدایه ما ژغوري له هسې غضبونو

***

پښتانه لکه مګس وربانديې ګرځي
ورته ایښی دی مغل د حلوا تال

***

شــرم دی ننــګ دی کــه ډار د ســر دی
ســمه مــې پرېښــوه ځــای مــې غــر دی
پښــتانه واړه دمغــول شــوروا خــوري
ماتــه یــې پــاتې دا شــور و شــر دی

***

پښــتانه پــه عقــل پوهــه څــه نــاکس دي
کوتــه ســپي دقصــابانو د جــوس دي
اوښ لــه بــاره پــه ولجــه پــه کــور ورغلــی
پــه ولجــه د اوښ د غــاړې د جــرس دي

***

درســت جهــان پــه ناپوهــانو ســره ډک دی
ولــې زیــات کــه پکــې وګــورې افغــان دی

***

کــه رښــتیا وایــم شېرشــاه دا هســې نــه و
لکــه مــوږ یــو نــن پیــدا لــه کوهســتانه
پښــتانه چې بې ننګي کـا څوک یې څه کـا
ګورســتان لــره بــه درومــو لــه ارمانــه

***

کـه پـه نور خلکو کې ښه سړي موندل شي
ولــې ښــه ســړي بــه لــږ وي افغانــان

هــــره چـــار د پښـــتانه ترمغـــل ښـــه ده
اتفـــاق ورســـره نــــه شــــته ډېـــر ارمـــان
د بهلــــول او د شېرشـــــاه خبــــرې اورم
چــې پــه هنــد کــې پښــتانه وو بادشــاهان
شــپږ او اووه پيـــړۍ يـــې هســـې بادشاهي وه
چې په دوی پـورې درست خلـک وو حيـران
يــا هغــه پښــتانه نــور وو دا ځــه نــور شــول
يــا د خــدای دی اوس دا هســـې شــان فرمــان
کــــه توفيـــق د اتفــــاق پښـــتانه مــــومي
زوړ خوشــال بــه دوبــاره شــي پــه دا ځــوان

***

پښـــــــتانه د ادم زاد لــــــــه زاده نــــــــه دي
د عفريـــت دی کـــه د ديـــو دي کـــه د دد دي

خوشال بابا د پښتنو ترځنګ مغول هم د خپل انتقاد په دايره کې شامل کړي دي. د خوشال بابا د ژوند او مبارزې يوه زياته برخه له مغولو سره په دوستۍ او دښمنۍ کې تېره شوې ده. لکه ځنګه چې بابا ته پښتانه معلوم وو، داسې ورته مغول هم ښه معلوم وو. نو ځکه خو يې د هغوی ظلمونو، بدو عملونو او نورو نيمګړتياوو ته هم نغوته کړې او انتقادونه يې پرې کړي دي.

مغول پاچا (اورنګزېب)، چې د خوشال بابا د سیاسي مبارزې یو اړخ ورسره تړاو لري، د بابا په کلام کې ډېر زیات یاد شوی او غندل شوی دی او همدارنګه نور مغول هم.

تفاوت د خپل پردي وربانديې نه شته
که یې ګورې اورنګزېب بادشاه ګمراه دی
دا لاڅه چې هندوستان توره تیاره ده
په هر ځای دده د خویه بویه اه دی
د اورنګ بادشاه په دور ارام نه شته
چا ویل چې جهان ځای د ارامګاه دی
که زینت و ته یې ګورې یو یزید دی
که طاعت وته یې ګورې اهل الله دی

***

وخت د اورنګ شاه دی    د هر چا تسپې په لاس دي
خدای(ج) ځینې خبر دی    په اخلاص که په لباس دي

***

پلار یې په بند، ورور یې بند بند کړ
ځان یې هم شیخ، هم دانشمند کړ
اوس په غزا کې خپل ځان غازي بولي
په څو څو رنګ یې، خپل ځان څرګند کړ

***

خانـــان يـــې واړه تـــلاوت خـــوان كـــړل
د هنـــد هنـــدوان يـــې دانشـــمندان كـــړل
وخت داورنـګ دی عمـل يـې هـېڅ نـه شـتـه
خـــو كتابونـــه يـــې پـــه عـــالم ګـــران كـــړل

***

ددې دور شـــيخان ډېـــر دي لـــور پـــه لـــور
اورنګزېـــب بادشـــاه د واړو دی انځـــور
پـــه هغـــه چـــاړه قلـــم ســـازكا قـــرآن كښـــې
پـــه هغـــه چـــاړه شـــهرګ پـــرې كـــا دروګـــر

***

نو ځكه خو خوشال بابا دداسې واكمن اطاعت نه كوي:

اطاعت د اولوالامر ځكه نه كړم
خليفـه د زمانې په زړه كافر دی

بابا د نورو مغولو په باب هم انتقادونه لري:

د هند په تخت چې عالمګير كېناست
پـــه خـلكو كانږې د اسمان پـرېوت

بابـا د مغولـو پرضـد پـه مبـارزه لاس پـورې كـوي او د پښـتنو د يووالي هيلـه كـوي، چې ټول پښـتانه بايـد لـه كندهار تـر اټكـه د

ننګ په کار کې پټ اوښکاره سره یو شي، چې د مغولو له ستم نه ځان خلاص کړي.

ټول پښتون له کندهاره تر اټکه
سره یو د ننګ په کار پټ او اشکار

***

ناګهاني په دا ملک فساد بنیاد شو
د ما هم د تلافی کار را په یاد شو

***

نن د وارو پښتنو په ننګ ولاړ یم
دا چې هسې په هر در هر درنګ ولاړ یم
چې پښتون شوم په دا هسې سپینه ږیره
نور مې خدای مه کړه مغول وایم په خیره

***

و مغول و ته به نن کړم اټک پوله
ملک به خلاص کړم د مغول له غاله غوله

خوشال بابا نه یوازې په ټولنیز ژوندانه کې د ټولنیزو نیمګړتیاوو نقاد دی او پر دغو برخو یې نیوکې کړي، بلکې پر هغه چا یې هم سختې نیوکې کړي، چې د ریا عبادت یې د خپل ژوند د اړتیاوو د خړوب وسیله ګرځولی او خلک پرې تېرباسي.
خوشال تل دا ډول شیخان غندلي او له دې ډول ملایانو سره یې ورانه ده.

حقیقي سجده هغه ده چې د یار په لور یې کړې
و کعبې ته چې سجده شي دا سجود دی مجازي

***

هر چېرته چې ګرځې په لاحول ورنه تېرېږه
سل بلا په زړه کې سل دانې تسپې په غاړه

***

د ابلیس غوندې مکرونه یې په زړه کې
په فریب کې تر ابلیسه لا ماهر دی

***

ډېر دي چې تر تا نه، خپل ځان ملک کا
په ښو خبرو، ځان په فلک کا

نغوذ بالله، چې ښه یې ځیر کړې
شیطان تر ځان پورې، لکه کودک کا

***

په خوله یې ذکر په زړه کې نور فکر
فساد د دور دانا شیخان دي

***

چې د کنز د قدوري شي ځان ملا کا
هر حلال حرام په ځان باندې روا کا
نه د کنز په دقيقو څه خبر شوي
نه په مخ د قدوري مبصر شوي
کتابونه په سر کېږدي ځان ملا کا
په هر کلي علت ګرځي ټګي غلا کا
کښي شرع پرېکوي په رشوتونو
ځان قاضي کا په غلط روايتونو
و هرچاته مسلې د سخاوت کا
خپله خونه ډکوه بله غارت کا
په مسجد راځي پنځه وخته اذان کا
چې ذکات سرسايه نه وي مسجد وران کا
د ميراث مالونه خوري له ظالمانو
نوم په ځان باندې کېږدي د عالمانو
په دا هسې علم برند کښي ملا يي
و عالم ته ميراث خور د انبيا يي
نه يې کښل زده، نه لوستل زده، تل ټګل کا
تعويذونه ورکوي په دروغ کښل کا
په ناروغ يې خوښي لا زياته تر روغ شي
څښت، تعويذ، دعا، هيکل کې په دروغ شي
لا رنځور غريب صحت نه وي موندلای

چې اخون وي اخیستو ته ور نیولای
که په ورکړه کې څه درنګ څه خو تعطیل وي
په غوغا په شور و شر یې قال و قیل وي
چې دا زر هسې ناسازې کا اغازې
خپل مقصود مطلوب حاصل کا په ناسازې
چې څوک ترس له خدایه نه کاندي غلول کا
اس به پربږدي زین به باندې په جاهل کا

***

مریدي په کلا په نمبره ده
که پیري مریدي دا ده مسخره ده
څوک په پیر او په مرشد څه لره ویاړي
خپل مراد دې همګي له علمه غواړي
شیخ په ګوټ کې ناست دی چې دنفس سره غزا کړم
چې شي تورو ته وراندې غزا داده

***

په خوله کلیمه لولي نمونځ روژه کاندي کافر شته
دعوې کا د شیخیه، تر شیطانه لا بتر شته
له کوره لوټه واخلي، استنجا لره روان شي
تقوی تر هسې حده، په ولجه یې وړي که زر شته
یو ځای الوده نه دی په دا هسې دروېشانو
په دا دور که ګورئ دا ناپاک په هر کشور شته

چې خاص د زمانې دي حال يې دادی، نور وګړي
د غوا وو د خرو د کلي دی خالي نوم باندې بشر شته
چې حال د پرهېزګار و سراسر واړه دروغ شو
رښتيا غواړي له چانه چيرته پاتې دا هنر شته

***

شيخان چې هسې اوږده نمونځونه کا
په کې باغونه اسونه جونه کا
په کې رنګين رنګين ګنډي وريښمين
سکڼي
په کې د سپينو د سرو ګنجونه کا

***

نمونځ، روژه چې د ريا د پاره کېږي
له اسمانه به لعنت باندې اورېږي

***

کتابونه د اسمان د ځمکې لولي
په عمل يې فرق د ځمکې د اسمان دی
په باطن يې زړه ګومان سره تړلی
په ظاهر ويل په ژبه مسلمان دی
په خبرو کې يې فيض مونده نه شي

مذبــذب پــه قــول پــه عهــد پــه پيمــان دی
پــه طاعــت پــه عبــادت کــې کــه بلعــم شــي
پــه اخــر انــس پــه نغوتــه بــې ايمــان دی
زه خوشــــال ختــــک بنــــده د هغــــه چــــايم
چــې يــې رو د زړه د خــولې ســره يکســان دی.

***

تــل قــرآن د وړانــدې ايښــی قــرآن لــولي
ولــې هــيڅ عمــل يــې نــه وي پــه قــرآن

***

خوشال بابا د يو لوی مفکر او سالار اديب په توګه، ادبي برخې هم له نظره نه دي غورځولي، د خپلو ليکوالو ادبي نيمګړتياوو ته يې هم ګوته نيولې، آن پر داسې ليکوالو يې نيوکې کړي، چې تر ده وړاندې پرې چا د انتقاد جرئت نه شو کولای، خو ده د خپل فنان ذهن او ژور ليد له مخې د هغوی اثار وتلل او نيمګړتياوو ته يې ګوته ونيوله.

تر بابا دمخه ډېر لوی شخص چې مذهبي شهرت او اغېزيې تر ليکنو زيات و، هغه اخوند درويزه و چې چا پرې د انتقاد کولو جرئت نه شو کولای او هغه وخت پـه ټولنه کې مطرح شخص او ليکوال و، خو خوشال بابا د هغه اثار وتلل او بيا يې پرې داسې نيوکه وکړه:

درویزه له یوه لوري راپیدا شو
په لږ علم په دا ملک کې لوی ملا شو
د روښان خیرالبیان یې ولیدلی
هغه هم مجهول بیان و ناسپندلی
ده چې خوشې میدان بیا موند سخنګوی شو
په ویل کې یې چې زړه و هسې توی شو
درویزه چې بیان کړی خپل کتاب دی
نوم یې مخزن الاسلام کړی جناب دی
که یوه مسره په شل بله په سل ده
نامربوطه ناموزونه په ویل ده
مسلې لس نظم کړي په پښتو دی
درته څه وایم چې څه دي د ایستو دي

د اخوند درویزه د (مخزن) په باب زیاتوي چې دا یو مجهول او بې وزنه کتاب دی او هغه د عربي قصیدې بوصیري ترجمه ښیي.

هر هر بیت د قصیدې چې در مرجان دی
په پښتو کې تراوربشو لا ارزان دی
قصیده د بوصیري ترجمه کړې
عربي یې تر پښتو مضحک راوړې

***

مخزن مې د اخون چې تمامي په نظر کښېوت
په دې کې عروض نه شته نه يو بحر ما موندلی
يـــو کتـــاب دی درويـــزه ســـره جـــوړ کـــړی
د ســوات خلـک يــې لـه کـل علمـه مـوړ کـړی
نـا معقـول مجهـول بيـان پـه کـې بـې ځايـه
پـــه کـــې بـــد د حســـين وايـــه يزيـــد ســـتايه
پـــه حيـــرت بـــه واړو ګـــوتې وچيچلـــې
د اخـــون پـــه مخـــزن چـــاګوتې کښـــېولې.

خو هغه چا چې پوره او کره شعر ويلی، خوشال بيا هغه ستايلی دی، لکه ميرزا خان انصاري:

له چانه په پښتو کې ما ميزان ميندلی نه دی
ميـرزا پـه دا زبـان کـې ويـل کـړي دي تللـي

خوشال بابا په يوه قصيده کې د ځينو نورو شاعرانو ارزونه داسې کوي:

يـو پـه حـال او پـه ماضـي کـې داسـې نـه و
چــې ښــکاره يــې د خبــرو راتــه خونــد کــړ
د ميـــرزا دېـــوان مـــې ومنـــډه پـــه ګـــوډي
مســخره مــې ارزانــي خويشــکی زمنــد کــړ

که دولت و که واصل و که دا نور وو
په خبرو مې د هر یوه ریشخند کړ
کلمې مې ورته سازې کړې د قندو
د اوربشو په ډوډۍ چې به یې شخوند کړ
***
هر چې لاف وهي د شعر
نن په دا دور دي ډېر
خدای دې نه کا چې به وایم
حال د دیو تېر و بېر
څوک پاوي څوک نیم پاوي دي
قلندر په کې نیم سېر
چې د موږه په حساب دي
هېڅ مې نه دی واصل هېر
بل دولت فقیر درې پاوه
نه تري څو سرشاهي سېر
***
د هغه شاعر دانې وشه په ژبه
چې د شعر دردانې پلوري په مال
***

د هغه شاعر مخ تور شه چې په طبعه
و هر در و هر دربار و ته ولاړ وي.

# ټولنپوه خوشال

خوشال نه يوازې د خپلې ټولنې يو فنان او هنرمند دی، بلکې د خپلې ټولنې او خپلو خلکو يو رنځپوه او اروا پوه هم دی. خوشال بابا د خوی، خصلت، فن او مسلک له مخې د ټولنې وګړي سره وېشلي، تللي او تجزيه کړي يې دي او په ټولنه کې يې د هر چا کار مشخص کړی دی.

خوشال بابا د يوه ټولنيز او سياسي شخصيت په باب په خپل کتاب (دستارنامه) کې دقيق معلومات وړاندې کړي. د خوشال بابا په اند که څوک غواړي په ټولنه کې يو لوړ سياسي او ټولنيز شخصيت د (دستار سړی) شي نو بايد شل هنرونه او شل خصلتونه زده کړي، ده دا شل هنرونه او شل خصلتونه هر يو په خپله دستارنامه کې تشريح کړي دي. په شلو خصلتونو کې خوشال بابا د نارينه لپاره يو خصلت هم، شجاعت ضرور بولي او دا د (مرد) لپاره لازم ګڼي، ځکه خو نو په ټولنه کې دی د (مرد) او (نامرد) لپاره خاصې پولې ټاکي، چې د هغو له مخې يو بل سره توپيروي خوشال بابا وايي:

مـــرد بـــه نـــه شـــي پـــه گفتـــار ... څو پيـدار نه کړي کـردار

چـــې دې وکنځـــي مـــرد نـــه دی ... کـه لـه تانـه وي پـه ډار

چـــې څـــه دی خـــو انتقــــام دی ... د مردانـــو کـــار او بـــار

چـــې عـــــزت ورڅـخـــه نـــه وي ... هغـه مـرد نـه دی پـه کـار

هـــم مهـــره لـــره هـــم زهـــر ... ښـه مـردان دي لکـه مـار

چـــې هـــم تنـدر هـم بـاران دي ... تـــر هغـــو مردانـــو ځـــار

مـرد بـــه غـــم د خـــپل هنـر کـا ... نـــه د زرو، نـــه دينـــار

مـرد بـه غـم کـا د خـپل شـرم ... د عــــــزت، د اعتبـــــار

نـامـــرد فـــخر پـــه نسـب کـا ... مرد نـه مـور لـري، نـه پـلار

***

مـــرد هغـــه چـــې همـــت نـــاک برکتنـــاک

لـــه عالمـــه ســره خــوږ پــه زيســت و ژواک

مـخ يـې مـخ، قـول يـې قـول، عهـد يـې عهـد

نـــه دروغ نـــه يـــې فريـــب نـــه تـــش تبـاک

لـږ ويـل ډېـر يـې کـول پـه خاموشـۍ کـې

د غـونچې غونـدې خولـه ډکـه، سينه چـاک

چـــې خبـــره د پســـتۍ د بلنـــدۍ شـــي

پـه لـويي لکـه اسـمان پـه پسـتۍ خـاک

پـه تمکـين کـې لکـه سـبر، پـه سـخا کـې

پــه هــر لــور څــانګې ږنګــورې لکــه تــاک
لکــه ګــل شــګفته روی تــازه پــه بــاغ کــې
همېشــــه د ښـــو بلبلـــو پـــرې بلغـــاک
چــې دا هســـې ښــه ویــل کــا زه حیــران یــم
چـــې خوشـــال راوړ لـــه کومـــه دا ادراک

د مرد په باب بیا په نورو شعرونو کې وايي:

مـــرد بـــه غیـــور وي مـــرد بـــه صـــبور وي
هـــم بـــه پـــه عفـــو پـــه کـــرم مشـــهور وي
نـــامرد هغـــه دی پـــه حقیقـــت کـــې
چـــې دا څـــو توکـــه یـــې لـــه دلـــه دور وي

***

کـــه د مردانـــو پـــه دیـــن ایـــین یـــې
نـه بنـد پـه سـره یـې نـه بنـد پـه سـپین یـې
کـه نـه دې تخـت شـته نـه دې افسـر شـته
قیصـــر د روم یـــې فغفـــور د چـــین یـــې

***

څـــو وانخلـــې لـــه غلیمـــه انتقـــام
مـرد نـه خـوب کـا نـه خـوراک کـا نـه ارام

چې د ننګ او د ناموس اندوه يې نه وي
د هغه سري به نه وي احترام
چې د بل تر لاسه ورغی د بل شو
مرد به خپل لري د خپل فکر زمام

***

په جهان کې که مردان دي هم هغه دي
چې و سختې ته ونيسي ځانونه

***

واړه زړونه فراغت دي په ښادۍ کې
چې په غم کې مردانه شي سخا هغه

***

له دې بيتونو ښخه معلومېږي چې دی هغه چاته په درانه نظر ګوري چې له ګفتار سره کردار هم ولري او د عمل جنبه يې ډېره درنه وي، هغه څوک چې د چا سترګه ترېنه نه سوزي او خپل انتقام په لوړه پيمانه نه شي اخيستلای، يا يې د خپل فکر زمام په خپل لاس کې نه وي او پر پت او عزت باندې، د سر و مال ښندلو ته نه وي تيار، د ده د احترام وړ نه دی.
دی (مرد ) له مار سره تشبيه کوي چې بايد هم زهر ولري او هم د مهر موره، هم لکه د اسمان وريځ، د رحمت بارانونه ورسره وي او

هم اسماني تندر چې د سړي ځواب په توره ورکړي او په سختو حالاتو کې د صبر او متانت خاوند وي.

د اسمان په څېر لويي او بلندي او د ځمکې په شان فروتني دواړه د يوه لوی شخصيت لپاره ضروري ګڼي. پر عهد و قول ټينګار، له چل ول او ټګۍ برګۍ نه ځان ساتل، د نارينه ژوند شعار بولي. که څوک د مردانو پر دين او ايين ټينګ وي، هغه ته د روم قيصر او د چين فغفور وايي، د خوشال په نظر بريالی شخص بايد د تمکين او وقار خاوند وي.

د خان په ټولنيزو نظرياتو کې دا ټکی هم نظر ته ډېر راځي چې دی د انسان فطري او طبيعي استعداد ته په ډېر اهميت قايل دی او ذاتي استعداد د انسان په شخصيت جوړونه او ټولنيز ژوندانه په سمون کې ډېر موثر ګڼي. لکه چې په دې لاندې شعرونو کې وايي:

چې بنيادې پيدا شوی په نفاق
د هغه نه طمع مه کړه اتفاق
چې وودلې وي په ذات توره شړۀ
سپينول يې و هرچاوته دي شاق
د عسل سره يې خوره خوږه به نه شي
مړغونې چې ترخه دي په ميثاق
که ((اخلاق ناصري)) په يادو ووايي

## په اخلاق کې به ښه نه شي بد اخلاق

دغه راز د خوشال بابا په کلام کې په لسګونو ځایه داسې مسایل څېړل شوي چې د ټولنپوهنې له نظره د انسان شخصیت او ماهیت څېړي، د خوشال د اثارو په هېنداره کې زموږ د ټولنې انسان له هر پلوه ډېر ځلېږي او د هغه ښېګڼې او بدګڼې په کې له ورایه ښکاري، نو له دې کبله خوشال ته زموږ د ټولنې یو وتلی ټولنپوه ویلای شو.

# رنځپوه (طبيب) خوشال

پــه دارو کــې چــې ښــه نــيت وي
دارونــــــه وي عـــــــبادت وي
عبـــادت پــه روغ صــورت شــي
ګڼـــې کلـــه عبـــادت شـــي

خوشال بابا د علم او فن د نورو برخو په شان په طب او طبابت کې هم لوی لاس درلود ، د خپل وخت پر زياتو طبي علومو خبر و ، په طبي برخه کې يې زياته مطالعه کړې وه. ځکه يې نو په خپل کلام کې طب او طبابت ته هم زيات ځای ورکړی دی، ده هم په يو شمېر شعرونو او نثرونو کې دا موضوع څېړلې او هم يې د (طب نامه) په نامه يو مستقل منظوم اثر ليکلی دی. له طبنامې پرته په (فضل نامه) کې هم د طبي مسايلو په باب يو شمېر لارښوونې شوې دي.

خوشال بابا په طبي برخه کې تر هر څه وړاندې د انسان لپاره د عقل او روغتيا د ساتنې لارښوونه کوي. د بابا په نظر که په يو

انسان کې عقل او صحت دواړه ښه وي، نو ډېره خوبي ورسره ده او که دا نه وي نو خوبي ورسره نه شته:

يو صحت بل عقل غواړه
ته په دا کې خوبي غواړه
که دا دواړه تو که نه وي
نوره هره خوبي ولاړه

پخوانيو حکيمانو او صوفيانو د روحاني قوت د پيداکولو لپاره درې شيان لازمي ګڼلي دي:
(کم ويل، کم خوړل او کم ويدېدل). خوشال بابا دا موضوع داسې يادوي:

ابدال په دا ځلور خويه ابدال دی
کم ويل کا کم د چا سره ګډون
کم ملاستی کا په خوراک کا کمه مينه
په دا شان يې په عالم کې دی ژوندون

اوبه د ژوند لوی نعمت دی چې بې له اوبو ژوند امکان نه لري، بابا د صحي اوبو په باب وايي:

کــه اوبــه وي د بــاران یــا د چینــې
د کــوهي اوبــه ضــرر دی د بشــر
ښــې ســړې خــوړې اوبــه د ســړي ځــان دی
ولــې تــود طعــام ســړې اوبــه ضــرر
چې تودې اوبه څوک څښي غارمه وهلی
پــرې نقصــان د اشــتها شــي رنــګ اصــغر

د خوراک په باب وایي:

څو چې ډېر طلبګار نه شې طعام مه خوره
هر زمان په شخوند کې مه شه لکه ستور
***
ډوډۍ غنمینــه وي کــه اوربشــینه
پــه وخــت د لــوږې خــوږه لګینــه
مــوړ د نبــاتو حلــوا تــه نــه ګــوري
هوښــیار بــه پــوه شــي پــه دا رازونــه

خوشال بابا د سړي ځواک او د ملا د پیاوړتیا لپاره نصیحت کوي او د زیاتې کوروالۍ نه کولو ته سړی رابولي، دخوشال بابا په نظر (( د صحت په کار کې ډېر فکر بایده وي )).

دا د ملا اوبه یې واړه درګوهر دي
که سړی یې شي د قدر نه خبر
درګوهر به هغه څوک لوني بې ځایه
چې په پوهه کې ابله وي ګېدی خر

خوشال بابا په دې بیتونو کې هر څه بیان کړي، خو ورسره یې د علاج او درملنې لپاره هم لارښوونه کړې ده:

که قوت زیاتوي تل خوره شوده پې
چې تر دانه دارو نشته معتبر
که یې مومې اوړی ژمی ګبینه خوره
خو په سود یې خبر مه کړه خپل پدر

خوشال بابا د انسان د بدن د زیاتو برخو او د هغه د زیاتو ناروغیو د علاج لپاره داسې لارې ښودلې دي، چې آن په نننی عصري طب کې هم ورڅخه ګټه اخیستل کېږي: خوشال بابا اول دا نصیحت کوي چې ناپوه طبیب ته مه ځئ، چې دارو یې خطر لري:

د طبیب دارو هاله خوره چې حاذق وي
د ناقص طبیب دارو لري خطر

د انسان د روحي ارامۍ لپاره وايي، چې سړی بايد په باد او غبار کې ونه ګرځي، ښه هوا او خوشبويي کې وګرځي چې صحت ته ګټه لري:

ګرد، غبار، غارمه، چکړ هوا بد بويه
رنځ علت وبا پيدا کېږي اکثر

خوشبويي څو لګوې هومره فايده ده
تندرستي ده هم سنت د پيغمبر

اوسنی طب وايي، د هغو انسانانو لپاره چې وينه يې زياته وي په کال کې بايد يو مقدار وينه وباسي، دا کار يې صحت ته ګټه رسوي. بابا وايي:

فصد سړي سره نافع دی
د هزار علت دافع دی

د سترګو د علاج لپاره وايي:

کـــه رانـــــجه ســــړی تـــاوده کـــا
اطــريــفـــل ســـره يـــې اوبـــه کـــا
پـــه کـــې ډوب تـــاوده رانــجـــه کـــا
اووه ځلـــــه دا رنـــــګ وکـــــــــا
پـــــه دا رنـــــګ د ښـځـــــې پـــــې
اووه ځـــلــــــه ډوب پـــــــرې کـــــځ
بـــــيا دې واړه ښـــــه مـــيـــده کـــا
پـــه لـــېمو دې يـــــې ښـــه سـيده کـــا
چـــې د ســترګو ګــوهر يــې زحـــمـــت وي
نـــور بـــه دا رانـــجـــه صـــحت وي

د ټوخي دارو:

ښـــــه پـخـــه کـرکـــــڼه ګـــوره
ځـنــــــــې زړی واخـــــــله وروره
هـــغه زړی ښـــه وريتـــــه کـــړه
آس يـــې ګــډ پـــه ګبينــــه کـــړه
د هـــــــر ټــوخـــــــي دارو دا دي
چـــــې آســـــــان دارو دي دا دي

د نس خوږې دارو:

ښه دارو دي دا د ګېډې
که دې درد کېږي د ګېډې
انګزه سپیرکۍ چوکار هم
نمک سنګ واخله اشخار هم
ښه څربه هلیله ګوره
پوست یې واخله زما وروره
دا پینځه توکه همدمه
سره واړه دوه درمه
اوبه واخله څلور سېره
پرې د ارو لمبه کړه تېره
سره واړه جوشیده کړه
نرم اور پسې سیده کړه
چې نیم سېر اوبه شي پاتې
اوبه نه وي کمې زیاتې
بیا ور ګډې کړه شکرې
په ناشتا به یې ونغرې

د مثانې ډبرې دارو:

سهاګـــه، چـوکـــــر، کـــــور زړي
لـــــه تـــــودو اوبـــــو چـــــې نغـــــړي
کــه څلو ېښــت ورځــې څــوک وخــوري
رنـــــځ د ســـــنګ مثـــــانې وړي

په طب نامه کې همدارنګه د سترګو د ځینو ناروغیو، د ګنده دانو، بواسیرو، اشتها، جلابو، د وجو د بادو، سردرد او ځینو نورو ناروغیو په باب هم معلومات، علاج او لارښوونې راغلي دي.

# سیاستپوه خوشال

د خوشال بابا د ژوند یوه زیاته برخه په سیاسي مبارزه، کار او زیار تېره شوې ده. خوشال خان که خاني کوله، که ملکي، که جاګیرداري او یا هم قومي مشرتوب، نو په ټولو کې سیاست نغښتی و، خوشال بابا د ژوند د ډګر عملي سیاستوال هم و او د خپلې عملي او ذهني پوهې او تجربې له مخې سیاستپوه هم و.
ځکه خو په سیاسي علومو او پوهنو کې د خوشال تجربه او نظر د زیاتې تاییدونې وړ دی. خوشال چې د خپل ژوند په (۱۴) کلنۍ کې له خپل پلار سره یوځای د خپلو رقیبانو پر ضد په جګړه کې شریک شو، په حقیقت کې همدا دده د سیاسي ژوند پیلامه ګڼل کېږي. د خوشال سیاسي مبارزې بیا آن دده د عمر تر پایه پورې دوام وکړ، آن تر دې پورې چې ده وصیت وکړ؛ ما داسې ځای کې ښخ کړئ چې د مغولو د اسونو ګرد زما پر قبر پرېنوزي. مانا دا چې له تنکي زلمیتوبه بیا تر بوډا توبه پورې د خوشال ژوند په سیاسي مبارزه او هلو ځلو کې تېر شو.
خوشال د خپلې سیاسي مبارزې په ترخ کې له ډېرو سختیو او کړاوونو سره هم مخامخ شوی او یو ځل یې ځلور کلن بند هم ګاللی دی. خوشال د همدې ځلور کلن بند په موده کې له خپل

نبوغ نه ګټه واخیسته، د (دستار نامې) پر لیکلو یې پیل وکړ او په (۱۳) ورځو کې یې داسې یو جامع کتاب ولیکه چې د سیاست، ټولنیزو چارو او قومي مشرتوب لپاره ډېر معتبر اثر ګڼل کېږي.

خوشال خان په دې اثر کې د لومړي ځل لپاره د یو سیاستوال او قومي مشر د (دستار سړی) لپاره یو لړ اصول وټاکل، چې د هغو د پوره کولو له مخې یو څوک کولای شي د قوم مشر شي، سیاستوال شي او یا د دستار تړلو لایق وګڼل شي. د خوشال له نظره د دستار سړی باید دا شل هنرونه او شل خصلتونه ولري:

اول هنر د ځان د معرفت:

دویم هنر د علم چې کسب کمال باله شي.

درېیم هنر د خط چې لازم ملزوم د کسب کمال دی.

څلورم هنر د شعر چې پیرو د علم دی.

پنځم هنر د تیراندازۍ دی.

شپږم هنر د اسپ تازۍ دی.

اووم هنر د ښکار دی.

اتم هنر د شجاعت دی.

نهم هنر د سخاوت دی.

یوولسم هنر د ازدواج د معاشرت دی.

دولسم هنر د اولاد د تربیت دی.

دیارلسم هنر د تادیب خدم و حشم دی.
څوارلسم هنر د اسباب معیشت دی.
پنځلسم هنر د زراعت د دهقانیت دی.
شپاړلسم هنر د تجارت دی.
اولسم هنر د تحقیق د نسب دی.
اتلسم هنر د ترد د شطرنج دی.
شلم هنر د تصویر د نقاش دی.

## او شل خصلتونه په دې ډول دي:

اول – خصلت د مشورت
دویم – خصلت د عزیمت
دریم – خصلت د خاموشۍ
څلورم – خصلت د راستۍ
پنځم – خصلت د شرم و حیا
شپږم – خصلت د خلق نیکو و خلعت و خوشخویۍ
اووم – خصلت د مروت
اتم – خصلت د عفو او کرم
نهم – خصلت د تمیز
لسم – خصلت د عدل د انصاف
یوولسم – خصلت د توکل
دیارلسم – خصلت د خوف و د رجا

ثوارلسم – خصلت د ملک د انتظام
پنځلسم – خصلت د همت
شپاړلسم – خصلت د حلم
اوولسم – خصلت د غیرت
اتلسم – خصلت د عزم و احتیاط
نولسم – خصلت د طاعت د ورع
شلم - خصلت د استغفار [1]

خوشال بابا د یو سیاستوال لپاره پورتني هنرونه او خصلتونه لازم بولي. ددې هنرونو او خصلتونو په واسطه له ځاني ژونده نیولې بیا تر ټولنیز او هېوادني ژوند پورې ټولې چارې سمبالېږي. د خوشال په نظر یو واکمن یا سیاستوال باید پر دیني او دنیایي علومو دواړو پوه وي، چې د ملک د انتظام چارې سمبال کړي، که چېرې یو سیاستوال یوازې په دیني علومو پوه وي، نو د ملک ژوندنیو چارو ته به یې پام راکم شي او د ټولنې اقتصادي او د ژوند نور ډگرونه به وده ونه کړای شي او که چېرې یوازې دنیایي علوم یې زده وي، نو ټولنه به له دینه لرې شي او اخروي نړۍ ته به یې زیان ورسي، لنډه دا چې حاکم باید د ټولنې د ښه نظام لپاره دا دواړه علوم یاد کړي. د خوشال په نظر هغه چې ظاهري او باطني سیاست یا دیني او دنیایي علوم یې زده کړي

---

[1] د خوشال خټک دستارنامه، کابل چاپ، ۱۳۴۵ل کال.

دي، هغه د اسلام د څلورو خليفه ګانو په شان دي: (( هر چې ظاهري او باطني دواړه لري هغه په سيرت دي د خلفای اربعه رضوان الله عليهم اجمعين )).

خوشال بابا وايي، چې يو ملک د حاکم په سياست ودان دی، که چېرې سياست کمزوری وي او حاکم ناپوه وي، ملک خپله د کمزورۍ خواته ځي او ګډوډي رامنځته کېږي:

چې خالي شي د حاکم له سياسته
هغه ملک په بلا ياد شي

خوشال خان د يو ملک د مشر لپاره دا تدابير لازم ګڼي، چې د ملک اقتصاد ته پام وکړي، پر خپل پوځ لاس راکاږي او خلک له اقتصادي پلوه ښه وساتي، که چېرې داسې ونه شي، نو ملک کې به ګډوډي راشي، پوځ به يې متلاشي او تيت و پرک شي، نو ځکه خو وايي:

هر بادشاه چې خزانه ورڅخه نه وي
عاقبت ورڅخه تار په تار لښکر دی

خوشال بابا د يو ملت يووالی او پيوستون د دولت د بقا ضامن بولي او کله چې نفاق رامنځته کېږي هغه سره بيا غربت او بدمرغي په خپله راځي.

دولتونـــه چـــې د خلكـــو پـــه اتفـــاق دی
هغـه بـه خـوار شـي چـې پـه كـې نفـاق دی
دوه زړونه چې يو شي غر به هم پاره پاره كا
ځار تر يګانګۍ چې نعمتونه رابـښكاره كا

خوشال خان دغه راز د يو مشر او سردار لپاره ځينې شرايط هم ټاكلي چې علم، دين او مېړنتوب هم په كې راځي ، خوشال بابا د يو قومي مشر او خان لپاره يو لړ نورې ځانګړنې هم ټاكلي، هغه وايي چې خان بايد د سيم و زر پروا ونه لري او يوازې د شرم و ننګ په فكر كې وي:

خاني كار د هر چا نه دی د هغه دی
چې صرفه يې نه په زر وي نه په سر
يكباره يې په نظر كې شرم ننګ وي
د دنيا په سود و زيان نه دی خبر

همدا صفت بيا د يو سردار او د هېواد د مشر لپاره هم غوره بولي:

سردار هغه دی چې شرم ننګ لري
مدام د شرم تـوره تـر څنګ لري
صرفه په زر نه كا صرفه په سر نه كا

چې د شمنان وي له هغو جنګ لري.

***

چې صرفه کاندي په سر
یا صرفه کاندي په زر
نه به خان نه به سلطان شي
نه به خپل کاندي کشور
چې په ځان مړنی نه وي
مړنتوب نه کا لښکر

د دې ترڅنګ خوشال بابا د سرداری لپاره د یو لړ نورو ځانګړنو یادونه هم کوي:

سردار د عفوې د کرم ځښتن
د جنګ تر کاره په اشتي مین ښه دی
ډېر هنرونه د مرد داری دي
چې واړه تېر شي تېر مبرهن ښه دی

***

سرداري لره بویه دا درې توکه
یو همت دویمه توره بل اخلاق

خوشال، د حاکم یا سلطان لپاره نور ډېر ډېر هنرونه هم لازم او ضرور بولي، وايي:

د مارکــه نــه وي پــه تــن کــې زهــر
ســـردار کــه نــه لــري خنجــر د قهــر
دا دواړه تــوکـــه زمـــا پـــه پوهـــه
نــه يــاد پــه کلــي وي نــه يــاد پــه ښــهر[1]

د سياست او مشرتوب په باب د بابا په کلام کې ډېرې نورې زياتې څرګندونې هم شته، خو موږ دلته يوازې پر همدې لنډيز بسنه کوو.

---

[1] ګل پاچا الفت، ننګيالي پښتون، پښتو ټولنه، ۱۳۴۵ل کال، ۲۱مخ.

# ليکوال (خطاط) خوشال

خوشال بابا د خپلو ګڼو کمالونو ترڅنګ يو ډېر ښه ليکوال (خطاط) هم و. خط د هغه وخت په هنرونو کې يو مهم هنر ګڼل کېده. خوشال نه يوازې يو ښه خطاط و، بلکې د خط هنر پر ارزښت او ماهيت هم ډېر ښه پوهېده. خوشال د يو سياستوال او سياستپوه لپاره هم د خط او خطاطۍ هنر زده کول، لازم ګڼل، نو ځکه خو يې د (دستار سړي) لپاره په شلو هنرونو او شلو خصلتونو کې د خطاطۍ هنر په دريمه کټګورۍ کې راوړی او وايي: ((دريم هنر د خط چې داخل د کسب کمال دی)).

خوشال بابا په دستارنامه کې د خط تعريف، ارزښت او د خطاطۍ فن په باب په زړه پورې او ژوره ليکنه کړې ده. د ليک ارزښت يې په دې شان څرګند کړی چې آن ډېرو ژبپوهانو به هم ورته ګوته په غاښ شي، هغه وايي: ((علم او خط سره لازم او ملزوم دي. علم په مثال وحشي خط يې لکه کمند چې وحشي دی، پرې قيد شي. دا هومره کتابونه به نه وو که خط نه وی، په حساب، په کتاب په سياق به څوک پوهېدل که خط نه وی، د جهان کار سره ټول په خط دی، لوی هنر دی، منزلت، مرتبت يې

هم ډېر دی، قدر قیمت یې تر حساب تېر دی، که یې دولتمند زده کا زېب و زینت دی، که یې درویش زده کا د درویش دولت دی.

الحق څو چې څوک وایي دا هنر لایق د هغه تعریف دی، کار یې پټ نه دی څرګند دی، ولې حیف دا چې د هر چا په مصاحبت تن ورکا، لار نه ګوري، هر څوک یې چې په لاس واخلي، نور د هغه شي، د هرچا یار دی:

| | |
|---|---|
| درسته ښه یې ته دلداره | یوه چار دې ده یکباره |
| چې و تا و ته نږدې شي | نوره یې د هغه یاره |

کور دده ودان شه، چې دده دمخه څه ورانی ودانی په جهان شي، په هر چا چې دی دا تور مخ برابر کا، کیمیا ګر دی، سیسن یې زر کا. بې کامه وي هزار کامراني ورکا، د ډېرو په سرتاج کېږدي، د ډېرو خاورې په سر کا، په دا سبب چې دو زبان دی. د جهان سرګرداني په ده، هر زمان یې سر په تېره تېغ واهه شي، چار پخپل سرکا، مراد و نامرادانو ورکا، ځان ګداز رفیق نواز دی. جوانمردي ډېره، وفا یې تر حده تېره ده. دربغه چې د نا اهلو په لاس کې نه وی، په لاس د اهلو وی، دده د سر بلا په بد ذاتو په سفله و په سهلو وی. [1]

---

[1] خوشال خټک، دستارنامه، پښتو ټولنه، ۱۳۴۵ل کال، ۱۸-۱۹مخونه.

خوشال په دستارنامه کې د خط هنر د ارزښت د ځرګندولو په ترڅ کې د هغه د زده کولو لارې چارې هم په ګوته کوي او زده کوونکو ته یې د زده کړې لارې ښیي. وایي:

(( زده کول د خط موقوف د کاتب په تعلیم دی، پخپل طور چې ښه خط ګوري، کښې طبیعي باله. دا هم کښل زده کا اما شنیده کی بود مانند دیده- چې کاتب خوش نویس ورته د خط قواعد ښیي اصلاح ورکوي هغه خط په قواعد زده شي او زر زده شي خوش نویسي هم هغه باله شي چې خط د استاد زده کا.

د قلم سازول برابر د کتې ګوتې تر بند تراشه بویه، شګاف دې برابر وي چې یو اړخ بل یې نری پېړ نه وي، د مشق قلم خو پېړ وي هومره ښه وي په محرف قلم زر خوش نویس شي.

محرف و نوک دار قلم و ته وایي. د خط مراد په مړوند دی چې مړوند قوت وشي، نور ګوتې په قلم و جوړېږي. د مړوند قوت بې غټه قلم نه شي چې قلم لک وي، ځینې حرف ورځنې وو ځې قوت د مړوند کېږي. که مشق وور ډېر حرف وي دې کته لکه کته ګوته هسې وي.

مشق په تخته بد فتین بویه. که په د نري قلم ډېر کښې خوش نویس به نه شې که په غټ قلم لږ کښې خوش نویس به شې، قلم چې روغ کا په نقطه دې وازمیي، که نقطه ترې ښه پربوته او که نه بیا دې قط کا.

قلم تراش د قلم ډېره تېره بويه، هاله به ښه روغ شي ښه په قط شي نقطه به ترې ښه پرېوزي، دا کار واړه په چاړه تعلق لري.[1]

همداسې د سياهي د جوړولو لپاره هم لارښوونې کوي.

خوشال بابا نه يوازې د خط د هنر يو لارښود او خطاط و، بلکې د يو ځانګړي خط موسس هم و، چې زنځيري نومېده، دا يو ډول ځانګړی ليک دی چې خپله د دوی د کورنۍ ترمنځ کارېده او ښه يې داسې وه چې د تورو يو سر له بل سره نښلېده او همداسې زنځيري شکل يې نيوه، نو ځکه يې زنځيري باله. خوشال بابا د ((زنځيري)) په نامه يو اثر هم لري چې د حبيب الله رفيع په زيار خپور شوی دی.

د خوشال د فکر اوژوندانه د پورتنيو اړخونو ترڅنګ، چې مونږ ورته اشاره وکړه، سياستوال خوشال، تېرپوه خوشال، ښکاري خوشال، اسلامپوه خوشال، اروا پوه خوشال، مارشال خوشال، ښوونپوه خوشال او داسې نور عنوانونه چې هر يو د بابا د ژوند او فکر يوه برخه رانغاړي هم د زياتې شننې او څېړنې وړ وو، خو لکه څنګه چې د مخه مو يادونه کړې، بابا يو څو اړخيز شخصيت اود علم يو داسې بحر دی، چې هر څومره پکې مزل وکړو، بيا يې هم پای ته نه شو رسېدلای، ځکه خو مو پورتنيو څو برخو ته په لنډيز سره په اجمالي ډول اشاره وکړه.

---

[1] خوشال خان خټک، دستارنامه، پښتو ټولنه، ۱۳۴۵ل کال، ۲۰-۲۱مخونه.

# څلورم څپرکی

## پر خوشال بابا ځانګړي لیکل شوي کتابونه

خوشال بابا د نړۍ د اسې یو ستر عظیم او لوی شاعر، عالم، اندیال، مبارز او څو اړخیز شخصیت و، چې که هر اړخ یې په ځانګړي او جلا ډول وڅېړل شي، نو په خپله یو بېل شخصیت، یو بل خوشال او له نورو نه یو بېل او متمایز خوشال مو تر سترګو کېږي. خوشال یو داسې قوم او ملت ته منسوب شخصیت دی، چې نه په کې د لیک لوست کچه ډېره لوړه ده، نه د خپرنیو رسنیو له مخې د نورو د سیالۍ جوګه دی، نه یې ژبه د نړیوالو ژبو په کتار کې ودرول شوې ده، آن تر دې چې په خپل ټاټوبي کې هم د خپلې ژبې له نعمت څخه بې برخې دی.

د نالوستۍ په وجه د ملت د ډېرو وګړو ذهني اړیکې د هغې له ویاړلې ماضي سره غوڅ شوي دي. پر دې تنګسیا سربېره پردی فرهنګي یرغل لا بل لامل دی چې، ان د لوستي پاړکي پر ذهن یې هم د پردیپالنې سیوری خپور کړی دی.

خو ددې ټولو لاملونو، تنګسیاوو او نیمګړتیاوو سره سره خپله د پښتنو افغانانو او پردیو له خوا پر خوشال بابا په لسګونو مستقل اثار او اټکل تر (۲۰۰۰) عنوانو پورې بېلابېلې لیکنې خپرې شوې دي. د لروبرو افغانانو هېڅ یوه داسې خپرونه او چاپپانه به نه وي چې په هغې کې دې د بابا یادونه نه وي راغلې. اکثرو هغو بهرنیو خپرونو چې پر افغانستان یا افغانانو یې لیکنې کړي، ضرور یې د لوی خان یادونه هم کړې او د هغه له افکارو او اشعارو څخه اغېزمن شوي هم دي، یو شمېر بهرنیو ختیځپوهانو او نورو لیکوالو د بابا پر اندوژوند ډېرې په زړه پورې لیکنې کړي او مستقل اثار یې هم خپاره کړي دي، ځینو د خپلې ماسترۍ او ډاکترۍ تیزسونه هم د بابا پر ژوند او اثارو لیکلي دي. لنډه دا چې د بابا پر ژوند اثارو او شخصیت باندې د ټولو شویو لیکنو شمېر څو زرو عنوانو ته رسېږي، چې د هغو په باب تراوسه پورې د خوشال بابا څو کتابښودونه جوړ شوي او نورو ته هم اړتیا ده، خو موږ دلته یوازې هغه اثار معرفي کوو چې د بابا د ژوند، شخصیت او اثارو په باب لیکل شوي او په مستقل ډول چاپ شوي دي، په دې اثارو کې یا د اثر ټوله برخه د بابا اندوژوند ته ځانګړې شوې یا یې یوه برخه د هغه پر اند وژند متمرکزه ده او بله برخه یې خپله د بابا کلام دی. لکه په انګریزي ژبه د بابا ژباړل شوي شعرونه او بیا پر هغو تبصرې او شننې او

یا د هغه پېژندنه. مور دلته همدغه ډول مستقل او یا نیمه مستقل اثار معرفي کوو:

## ۱- خوشال خان خټک څه وایي؟

دا کتاب د استاد عبدالروف بېنوا له خوا لومړی ځل په هندوستان کې چاپ شوی دی. پر ۱۹۵۰ م کال، په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا بیا چاپ شو. کتاب ۱۵۸ مخونه لري او د خوشال د فکر وفن پر بېلابېلو اړخونو په کې بحث شوی دی.

## ۲- خوشال خان خټک او څو نور فرهنګيالي خټک:

د سر محقق عبدالله بختاني خدمتګار له خوا لیکل شوی. د خوشال بابا پر معرفۍ سربېره یې یو شمېر نور خټک شاعران او لیکوال هم معرفي کړي دي. دا کتاب (۳۷۲) مخه لري، خو تراوسه چاپ شوی نه دی.

## ۳- منتخبات خوشال خټک:

دا کتاب د سید انورالحق له خوا ترتیب شوی او د خوشال بابا د کلام غوره چاڼ په کې شوی دی، ددې کتاب اردو ترجمه هم شوې ده او په جلا ډول چاپ شوې ده. دا کتاب ۳۶۱ مخه لري او پر ۱۹۵۲م کال د پېښور پښتو اکیډمۍ له خوا چاپ شوی دی. په کتاب کې د بابا له کلام نه علاوه د هغه د ژوند حالات هم بیان شوي دي.

**۴- د توري او قلم خاوند:**

دا کتاب محمد نواز ختک ترتیب کړی، په دې کتاب کې ټول هغه مضامین راټول شوي چې د خان علین مکان ( خوشال بابا ) پر زیارت باندې د یوې لویې او درنې غونډې په ترڅ کې اورول شوي وو. دا کتاب اداره اشاعت سرحد پېښور پر ۱۹۶۱م کال چاپ کړی دی. کتاب ټول (۱۸۰) مخه لري.

**۵- خوشال او پسرلی:**

د خوشال بابا د پسرلنیو شعرونو یو غوره چاڼ دی، چې پر ۱۹۵۸م کال په کابل کې د پښتون غږ مجلې له خوا په **۳۲** مخونو کې چاپ شوی او غ. نوري پرې یوه سریزه کښلې ده.

**۶- ننګیالی پښتون:**

پر **۱۹۲۲**م کال په کابل کې د بابا په باب یو نړیوال سیمینار جوړ شوی و، ددې سیمینار مقالې د (ننګیالي پښتون) په نامه په **۳۳۰** مخونو کې د یوه ځانګړي کتاب په بڼه چاپ شوې دي.

**۷- توریالی پښتون:**

دا هم په کابل کې د بابا په باب پر ۱۹۷۱م کال د شوي سیمینار د لیکنو ټولګه ده، چې په کتابي بڼه په **۲۸۸** مخونو کې په کابل کې چاپ شوې ده.

**۸- د خوشال خان خټک یو شعر:**

پـه هـر څـه کـې ننـداره د هغـه مـخ کـړم
چـې لـه ډېـرې پیدا ییـه نـه ناپدیـد شـو

د بابا پر همدې یوه بیت باندې حمزه شینواري یو تحلیلي کتاب لیکلی او پر ۱۹۷۱م کال په لاهور کې د شاهین چاپخونې له خوا چاپ شوی دی، چې ۱۸۴ مخه لري.

**۹- ارمغان خوشال:**

میا سیدرسول رسا دا کتاب ترتیب کړی، د خوشال بابا د کلام انتخاب دی چې غزلې، قصیدې، رباعیات، قطعې، بازنامه، سواتنامه، فضلنامه او نور په کې شامل دي، دا کتاب پر ۱۹۶۴م کال په پېښور کې د یونیورستۍ بک ایجنسي له خوا چاپ شوی دی. (۱۰۳۳) مخه لري او د مرحوم رسا ۱۴۴ مخه سریزه هم ورسره مله ده.

**۱۰- ملي قهرمان:**

استاد ګل پاچا الفت ترتیب کړی او پر ۱۹۲۵م کال په کابل کې د پوهنې په چاپخونه کې چاپ شوی دی. (۱۱۴) مخه لري په کتاب کې لومړی د خوشال بابا په باب د بېلابېلو پوهانو نظریې راټولې شوي، وریسې د خوشال بابا پر نظریاتو (عشق، چلند او

ښکار پوهنه) بحث شوی او هم د هغه د کلام بېلګې راوړل شوي دي.

### ۱۱- خوشال خان خټک او د ده ادبي مکتب:

دا کتاب دوکتور عارف عثمانوف ترتیب کړی او پر ۱۹۸۲م کال په دولتي چاپخونه کې د افغانستان د علومو اکاډمۍ له خوا چاپ شوی دی. (۲۱۴) مخونه لري، کتاب درې څپرکي لري په لومړي څپرکي کې يې د شپاړلسمې او اولسمې پېړۍ د پښتو ادب تاريخ جاج اخيستل شوی، په دويم څپرکي کې د خټکو د اصل، نسب، قبيلې د خوشال ژوندود او د خوشال د فن په هکله خبرې شوي دي. په درېيم څپرکي کې د خوشال د ادبي ښوونځي او د کتاب د اخځونو يادونه راغلې ده.

### ۱۲- پښتو – خوشال نمبر:

دا د هغه سيمينار د ليکنو او نظمونو ټولګه ده، چې پر ۱۹۷۱م کال د پښتو اکاډمۍ پېښور له خوا شوی و، دا ټولګه ۸۸ مخه لري.

### ۱۳- خوشال شناسي:

دا هم د ليکنو يوه ټولګه ده، چې د تاج سعيد او زيتون بانو له خوا پر ۱۹۸۰م کال په کتابي بڼه ترتيب شوې او په ۱۵۹ مخونو کې په شاهين برقي پريس کې چاپ شوې ده.

**۱۴- خوشال کیست:**

دا کتاب مېرمن معصومه عصمتي وردګ لیکلی او په هغه کې یې د بابا د ژوند او اثارو په باب معلومات وړاندې کړي، دا کتاب په کابل کې چاپ شوی دی.

**۱۵- پښتو – خوشال نمبر:**

دا د خوشال په باب د بېلابېلو لیکنو او نظمونو یوه لویه ټولګه ده چې د پښتو مجلې د ۱۹۸۰م کال په مارچ- مې ګڼه کې د خوشال بابا د درې سووم تلین په درناوي، د پښتو اکیډمۍ پېښور له خوا په ۴۰۷ مخونو کې چاپ شوې ده.

**۱۲- خوشال ریویو:**

دا د خوشال رسیرچ سیل درې میاشتنۍ ګڼه ده، چې د خوشال د فکر و فن په باب لیکنې په کې چاپېږي، په لومړۍ ګڼه کې یې څلور ګڼې رانغاړل شوي او په ۲۷۱ مخونو کې چاپ شوې ده.

**۱۷- خوشال ریویو:**

د خوشال ریویو دویمه ګڼه کې هم دوه ګڼې راغلي دي. دا ګڼه پر ۱۹۸۵م کال چاپ شوې او ۱۷۹ مخه لري.

**۱۸- خوشال ریویو:**

د خوشال ریویو درېیمه ګڼه کې دوه ګڼې رانغاړل شوي او پر ۱۹۸۵م کال چاپ شوې دي، (۲۲۳) مخه لري.

## ۱۹- خوشال او جمالیات:

د ډاکتر اقبال نسیم خټک اثر دی چې پر ۱۹۸۳م کال لیکل شوی دی، (۴۷۷) مخه لري. ډاکتر اقبال نسیم خټک ته په دې اثر د (پي ایچ ډي) ډګري ورکړل شوې ده. دا لیکنه دوه برخې لري، په لومړۍ برخه کې د جمالیاتو بنیادي مباحث او د جمال (ښکلا) په باب د خوشال د تصور په اړه معلومات وړاندې شوي دي، په دویمه برخه کې د خوشال د فن او نظریې او د هغه په کلام کې د شعري محاسنو په باب خبرې شوي دي.

## ۲۰- خوشال خان خټک او د هغه د کورنۍ علمي او ادبي خدمات:

شاه جهان دا اثر د ۱۹۸۳م کال په بهیر کې بشپړ کړی، (۳۰۷) مخه لري، خو تراوسه چاپ شوی نه دی.

## ۲۱- خوشال خان خټک بابای پشتو شاعري:

شاه جهان دا اثر ترتیب کړی او د خوشال ریسرچ سیل له خوا پر ۱۹۸۵م کال چاپ شوی دی. (۱۲۳) مخه لري، په دې کتاب کې د خوشال د ژوند او فن په باب معلومات راغلي دي.

## ۲۲- ښاغلی پښتون:

دا د هغو لیکنو او منظومو پېرزوینو ټولګه ده، چې د نوښار ادبي جرګې د ۱۹۳۸م کال د جون پر میاشت د خوشال بابا د یاد

ورځې په مناسبت اورول شوې وې او بيا د نواز ختټک په هڅه او ترتيب د ۱۹۳۸م کال د اګست پر مياشت چاپ شوې ده، دا کتاب ۸۰ مخه لري.

## ۲۳- اباسين خوشال نمبر:

د اباسين مجلې د ۱۹۸۷ م کال اپريل- مى ګڼه د خوشال بابا په باب ليکل شويو مقالو او ليکنو ته ځانګړې شوې، د ۲۱ تنو ليکوالو ليکنې او منظومې بېلګې په کې راغلي او په ۸۸ مخونو کې چاپ شوې ده.

## ۲۴- خوشال خان ختټک د مطبوعاتو په هنداره کې:

په دوو ټوکو کې پر ۱۳۵۸ل کال د کابل پوهنتون له خوا خپور شوى، په دې اثر کې هغه کتابونه او ليکنې معرفي شوي چې د بابا په اړه ليکل شوي دي. د خوشال بابا د کتابښودنو په لړ کې دا ډېر مهم کتاب دى، په لومړي ټوک کې يې چې ۲۱۲ مخه لري د خوشال په باب ( ۲۸۲ ) عنوانه مقالې او په دويم کې چې ۲۰۴ مخه لري، ۱۲۳ عنوانه مقالې او ځينې ځانګړي کتابونه معرفي شوي دي.

## ۲۵- ګام پر ګام له خوشال سره:

د استاد محمد اصف صميم يو څېړنيز او تحليلي اثر دى چې د خوشال بابا پر ژوند ژوره څېړنه کوي، دا کتاب پر ۱۳۷۸ل کال د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې- جرمني له خوا په پېښور کې

په ۱۲۰ مخونو کې د یو زر ټوکو په شمېر چاپ شوی دی. په دې کتاب کې خوشال او کتابونه، خوشال او شاعران، خوشال د ژبې ټوپک، خوشال او قرآن، ګام پر ګام له خوشال سره او یو شمېر نور مسایل څېړل شوي دي.

**۲۶ -خوشال خان د مغلو په دربار او د ادب په ډګر کې:**

دا د شیریندل ګردیوال مونوګراف دی، چې په دې کې د خوشال لنډه پېژندنه له مغولو سره اړیکي او ادبي کارنامې څېړل شوي دي. دا اثر پر ۱۳۵۲ ل کال لیکل شوی، خو تر اوسه لا چاپ شوی نه دی.

**۲۷- خوشالخان ختک:**

دا کتاب دو ست محمد کامل مومند د خان پر ژوند او کلام، پر (۱۹۵۱) م کال په اردو ژبه لیکلی دی. (۴۱۲) مخونه لري او (اداره اشاعت سرحد) پېښور، چاپ کړی دی.

**۲۸- خوشال خان اور اقبال:**

دا کتاب عبدالصمد خان په اردو ژبه لیکلی، دبابا پښتو اشعار هم ورسره مله دي. پر ۱۹۴۰م کال د پېښور منظور عام پریس کتابتون چاپ کړی دی، (۳۷۲)مخونه لري. لیکوال په کې ددې دواړو شاعرانو پرتلنه کړې ده.

**۲۹- تعلیمات خوشال:**

په دې نامه، میر عبدالصمد خان یو کتاب په اردو ژبه کې لیکلی دی، دا کتاب د عکاس پرنټرز پېښور له خوا پر ۱۹۷۸م کال چاپ شوی دی، (۹۴) مخونه لري او د خوشالخان د کلام پر ځینو اړخونو په کې څېړنه شوې ده.

## ۳۰- خوشال خټک کا مختصر تعارف:

دا کتاب پورفیسور پرېشان خټک په اردو ژبه لیکلی دی. د ۱۹۸۰م کال د مارچ پر میاشت د اباسین ارټ کونسل پېښور له خوا چاپ شوی دی، دې کتاب کې د خوشال پر فکر و فن خبرې شوې دي.

## ۳۱- پشتنو کا عظیم شاعر خوشال خان خټک:

دغه کتاب پروفیسور نعیم تقوي په اردو ژبه لیکلی دی. (۱۹۲) مخه لري او پر ۱۹۸۱م کال په تجارتي پریس ناظم اباد کراچۍ کې چاپ شوی دی. په دې کتاب کې د خوشال د ژوند و فن په باب خبرې شوي دي.

## ۳۲- پشتون کون؟

ښاغلي پروفیسور پرېشان خټک لیکلی او پر ۱۹۸۴م کال د خوشال ریسرچ سیل له خوا چاپ شوی دی. ټول ۲۲۰ مخه لري او په اردو ژبه یې لیکلی دی، په دې اثر کې د پښتنو د اصل ونسل په باب د بېلابېلو نظریو جاج اخیستل شوی او بیا د خوشال د ژوند په باب تفصیلي خبرې شوي دي.

### ۳۳- خوشالنامه:

دا د هغه سیمینار د لیکنو او نظمونو جونګ دی، چې پر ۱۹۸۰م کال د خوشال بابا درې سووم تلین په درناوي په اباسین ارټ کونسل کې جوړ شوی و، د امقالې په اردو ژبه دي، دا کتاب پروفیسور پرېشان خټک او خاطر غزنوي ترتیب کړی او ۲۸۰ مخه لري.

### ۳۴- د خوشال د کلام انګریزي ژباړه:

میجر راورټي د خوشال بابا سل غزلونه او نظمونه په انګریزي ژبه ژباړلي او خپاره کړي دي او تبصره یې پرې کړې ده.

### ۳۵- د خوشال خټک شعرونه:

اولف کیرو او یولن هاول د پویمزاف د خوشال خټک په نوم په انګریزي ژبه د خان د شپږویشتو غزلونو ژباړه کړې ده او خپل نظر یې پرې لیکلی دی، دا کتاب ۹۸ مخه لري او پښتو اکیډمي پېښور پوهنتون له خوا پر ۱۹۲۳م کال چاپ شوی دی.

**۳۶**- دوست محمد کامل، اولف کیرو او یولن هاول د پویمزاف په شریک کوشش په انګرېزي ژبه یو اثر لیکلی، دې اثر کې د پویمزاف د خوشال خان خټک په باب خپله اختلافي څېړنه وړاندې کړې ده، دا کتاب پر ۱۹۲۸م کال چاپ شوی ، ۱۵۷

مخه لري، د کتاب په سريزه کې د خوشال بابا پر ژوند وفن خبرې شوي دي.

### ۳۷- په ډنمارکي ژبه د خوشال بابا شعرونه:

د ډنمارک پادري جنيزانوالډسن د بابا اته ويشت غزلونه او نظمونه په ډنمارکي ژبه ژباړلي او ديو کتاب په بڼه يې خپاره کړي دي.

**۳۸**- په انګرېزي ژبه دخوشالخان ختټک د کلام انتخاب دى چې غزلونه، قصيدې او نور په کې شامل دي، د سي-اى بډلف له خوا په انګريزي ژبه ژباړل شوي او د استفين او زامنو په اهتمام يې پر ۱۸۹۰م کال په ۷۴ مخونو کې چاپ شوي دي.

### ۳۹- لايف اينډ ورکس اف خوشالخان ختټک ( د خوشالخان ژوند او مبارزه ):

دا يوه څېړنيزه ليکنه ده، چې د لاهور مېرمن خديجه فيروزالدين د خوشال پر ژوند وفن، د ۱۹۴۰م کال په شاو خوا کې ليکلې ده اوبيا يې وروسته پرې له پنجاب پوهنتون څخه د دوکتورا درجه ترلاسه کړې ده.

دا ليکنه په انګريزي ژبه شوې وه، (۴۴۲) مخه لري، لومړنۍ برخه د خوشال له قوم او قبيلې، ژوند او جګړو او مړينې سره اړه لري او دويمه برخه يې د خوشال له اثارو او فن سره، دا ليکنه

چاپ شوي نه ده، خو د خپل لومړيتوب او څرنګوالي له مخې ډېره ارزښتناکه ده. دا سې ويل کېږي چې علامه اقبال مېرمن خديجې ته ددې ليکنې سپارښتنه کړې وه.

# پایله

څرنګه چې خوشال بابا یو عظیم او هر اړخیز شخصیت دی او دده ژوند او اند د هر اړخ څېړنه ډېر کار و زیار ته اړتیا لري، په لنډو څېړنو کې د هغه د ټول ژوند او فکر څېړل خورا ګران کار دی.
ما چې کله د بابا د اندو ژوند پر څېړنې پیل وکړ، نو دا راته لا زیاته څرګنده شوه، چې بابا د پوهې او هنر یو بحر دی، لیکوال یوازې دومره کولای شي چې ددې بحر پر یوې خوا یا یوې څپې خبرې وکړي او دزیاتو موضوعګانو له څېړنې او شننې تېر شي، هغه څه چې په دې اثر کې ما انتخاب کړي وو، هغه مې هم په لنډ او اجمالي ډول وڅېړل، ځکه ددې هرې موضوع پوره څېړل د یو ځانګړي اثر د لیکلو غوښتنه کوي. زما په دې لیکنه او هڅه کې به ډېرې نیمګړتیاوې وي او د بابا حق به مې نه وي ادا کړی. خو زما دا لیکنه لږ تر لږه د بابا له اند و ژوند سره د یوې ژورې مینې ننبه او د خوشالپوهنې په برخه کې د نورو څېړنو او پلټنو لپاره یوه هڅه او هیله ده.
خدای (ج) دې وکړي هغه څوک چې دا اثر لولي، د خوشال بابا په باب د معلوماتو په برخه کې ورته ګټور تمام شي.

په درناوي

پوهنیار محمد اسمعیل یون

۱۳۸۰ل کال، کابل

# اخځلیک


۱- الفت، ګل پاچا، ننګیالی پښتون،. پښتو ټولنه **۱۳۴۵** ل کال.
۲- انوارالحق، پښتو مجله، مارچ-می ګڼه پېښور ۱۹۸۰ م کال.
۳- تسنیم ګلاب، پښتو مجله پېښور، ۱۹۸۰م کال د مارچ-می ګڼه.
۴- خټک، خوشال خان، کلیات، لومړی ټوک دعلوموا کاډمي **۱۳۵۸**ل کال.
**۵**- خټک خوشال خان، دستارنامه، پښتو ټولنه **۱۳۴۵** ل کال.
۶- خټک، اقبال نسیم، اباسین مجله پېښور **۱۹۷۸**م کال اپریل-می ګڼه.
۷- روهي محمد صدیق، د خوشال کلیات، لومړی ټوک دافغانستان د علومو اکاډمي **۱۳۵۸** ل کال.
۸- رښتین، صدیق الله، د خوشال خټک طبنامه، پښتوټولنه، **۱۳۴۵**ل کال.
**۹**= رفیع حبیب الله، نسبنامه د خوشال خان خټک او افضل خان، لاهور ۱۳۸۰ل کال.
۱۰- رفیع، حبیب الله، دخوشال خان خټک خټکنامه، لاهور ۱۳۸۰ل کال.
۱۱- رفیع، حبیب الله، دخوشال خان خټک وصیتنامه، لاهور ۱۳۸۰ل کال.
۱۲- رفیع، حبیب الله، دخوشال خان خټک هندکوهنامه، لاهور ۱۳۸۰ل کال.
۱۳- رسا، سید رسول، ارمغان خوشال پېښور، **۱۹۲۴**م کال.
۱۴- شینواری، حمزه، ننګیالی پښتون، پښتو ټولنه **۱۳۴۵** ل کال.
**۱۵**- صمیم، محمد اصف، ګام پر ګام له خوشال سره، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه –جرمني، پېښور **۱۳۷۸** ل کال.
۱۶-عثمانوف، عارف، ننګیالی پښتون، پښتو ټولنه **۱۳۴۵** ل کال.

# د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه



محمد اسمعیل یون د حاجي محمد خان زوی پر ۱۳۴۶ل کال، د لغمان ولایت د الینګار ولسوالۍ د نیازیو په یوې روښنفکرې کورنۍ کې زیږېدلی دی.

لومړنۍ زده کړې یې د الینګار ولسوالۍ د سلینګار په لومړني ښوونځي کې سرته رسولي دي، تر هغه وروسته کابل ته راغی او په خوشال خان لیسه کې شامل شو. پر ۱۳۶۶ل کال له نوموړې لیسې څخه په دویم نومره بریالی او پر ۱۳۶۷ل کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې محصل شو. پر ۱۳۷۰ل کال له نوموړې څانګې څخه اول نومره بریالی او پر همدې کال بېرته دپښتو څانګې د کدر غړی شو. پر ۱۳۸۵ل کال په نوموړې څانګه

کې د ماسترۍ دوره پیل شوه، یون په ډېر ښه او بریالي ډول دا دوره پایته ورسوله.

محمد اسمعیل یون له ۱۳۷۰ ل کال څخه بیا تر ننه پورې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي تدریسي غړی او د (پوهندوی) علمي پوړۍ ته رسېدلی دی، پر استادۍ سربېره، استاد یون د ((کابل پوهنتون))، ((هیلې)) او ((شمشاد)) مجلو د چلوونکي دنده هم په ښه ډول ترسره کړې ده. په پېښور کې د چاپېدونکې ((معارف)) مجلې کتونکی غړی هم و. همدارنگه دیو شمېر نورو چاپي خپرونو همکار هم پاتې شوی دی.

استاد یون پر ۱۳۸۱ل کال، په جلال اباد کې ببړنۍ لویې جرگې ته د ختیزو ولایتونو د انتخاباتو د دفتر مشر شو، د دې جرگې لپاره تر ټاکنو وروسته د جرگې غړی، بیا د جرگې د غړو له خوا د ببړنۍ لویې جرگې دلومړي منشي په توگه انتخاب شو. استاد یون په دې جرگه کې تر خپل وروستي وسه خپل ملي او تاریخي مسولیت ادا کړ او د هېواد دښمنه عناصرو د توطیو مخه یې ونیوله.

تر دې جرگې وروسته، کله چې د افغانستان د اساسي قانون د تدوین بهیر پیل شو، نو استاد یون بیا د دې بهیر لپاره د ختیزو ولایتونو د دارالانشاد دفتر مشر وټاکل شو. په ختیزو ولایتونو کې د اساسي قانون د لویې جرگې لپاره انتخابات هم د همدې دفتر له خوا ترسره شول استاد یون د اساسي قانون د تصویب په لویه جرگه

کې د نوموړې جرګې د دارالانشا د غړي په توګه خپل فعال رول ادا کړ. ټاکل شوې وه، استاد یون په ختیزو ولایتونو کې د افغانستان د جمهوري ریاست لپاره د عمومي ټاکنو د دفتر مسول شي، خو په کابل کې د لویو جنګسالارانو او ځینو تنظیمي مشرانو له خوا پر حکومت او ملګرو ملتونو د زیات فشار له امله له کاره ګوښه شو.ملګرو ملتونو(UNAMA) استاد یون ته وړاندیز وکړ، چې په کابل کې به تر دې لوړه دنده درو سپارو، خو استاد یون ونه منله او خپلې استادۍ ته یې دوام ورکړ.

درې کاله وروسته یې د ځینو ملګرو په زیات ټینګار او غوښتنه، د جمهوري ریاست د ملي امنیت شورا په دفتر کې د فرهنګي چارو د ریاست دنده ومنله او په کابل پوهنتون کې پر استادۍ سربېره لا تر اوسه دا دنده پر مخ وړي.استاد یون پر **۱۳۸۵**ل کال د افغانستان او پاکستان د امن ګډې جرګې لپاره د افغانستان له خوا د منشي په توګه غوره شو او دا دنده یې هم په ښه ډول ترسره کړه.

استاد یون د خپلو اکلیکوال په توګه په تېرو شلو کلونو کې ګڼ شمېر فرهنګي او ټولنیز خدمتونه ترسره کړي، په ګڼو چاپي، راديويي او ټلويزيوني مرکو کې یې د واقعیتونو او حقایقو د څرګندیيان له امله د خلکو په زړونو کې ځای نیولی دی. که څه هم ډېر خلک د یون لیکنې، مرکې او نظریات خوښوي، خو یو شمېر داسې خلک هم شته، چې د یون سرسختې مخالفین دي. د هغه ملي او

ګټورو نظریاتو ته هم غلط رنګ او تعبیر ورکوي، دا ډول اشخاص، چې اکثره یې زورواکي او د سیاسي ډلو ټپلو غړي او مشران دي، د استاد یون نظریات خپلو شخصي او تنظیمي ګټو ته خطر بولي، نو ځکه یې په ټینګه مخالفت کوي. زه د دې شاهد یم، هر کله چې یون کومه لیکنه او مرکه کړې، نو دده پر وړاندې یې مثبت او منفي غبرګونونه دواړه راپارولي دي، منفي غبرګونونه اکثره وخت د هغو اشخاصو او ډلو له خوا وي، چې په تېر کړکېچن سیاسي بهیر کې یې ډېرې نامشروع ګټې ترلاسه کړي او ځانونه یې مطرح کړي دي.

مثبت غبرګونونه اکثره د ولس د مشرانو، روښنفکرانو او نورو مخورو له خوا وي، خو استاد یون په دغسې سختو اغزنو او تنګو شرایطو کې بیا هم خپل فرهنګي، سیاسي او ټولنیز کار ته دوام ورکوي.

دا اوسنی فرهنګي کار، چې تاسو یې اوس په مسلسل ډول ګورئ، دا د تېرو شلو کلونو کارونه دي، چې له تېر یو نیم کال راهیسې پرې په منظم ډول کار شوی، اوډل شوي او دادی ستاسو مخې ته ایښودل کېږي، په دا سې یو دولتي دفتر کې چې بوختیاوې په کې ډېرې وي، د منظم او ستر فرهنګي کار سرته رسول اسانه کار نه دی.استاد یون پر خپلو فرهنګي کارونو سربېره د ګڼو فرهنګي ټولنو د غړي، همکار او موسس غړي په توګه هم خپل فرهنګي رول ادا کړی، په پېښور کې

یې د دوو المان مېشتو فرهنګي ټولنو (دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې) او(د پښتني فرهنګ د ودې پراختيا ټولنې) د همکار په توګه د بېلابېلو ليکوالو په لسګونو اثار، ايډيټ او چاپ کړي دي. دغه راز يې په سلګونو کورنيو مشاعرو، ادبي غونډو او سيمينارونو کې ونډه اخيستې ده، خپله يې هم په لسګونو مشاعرې، سيمينارونه او علمي ورکشاپونه جوړ کړي دي.

سربېره پر دې، په يو زيات شمېر، ملي او نړيوالو کنفرانسونو کې يې په ښه ډول د خپل هېواد استازي کړې ده. دلته به يې د اثارو يادونه وکړو:

## اثار

### الف- پنځوني:

| کتاب نوم | څرنګوالی | چاپکال |
|---|---|---|
| • مټکور | لومړۍ شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • په اورونو کې سندرې | دويمه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |

### ب- راټولونې:

| | | |
|---|---|---|
| • هيلې | ګډه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • نيمګړي ارمانونه | د حيران شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • د لوونو فصل | ګډه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • د نازو انا ياد | د سيمينار د ليکنو ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • د استاد الفت نثري کليات | د استاد الفت نثرونه | درېيم ۱۳۸۷ |
| • سيندونه هم مري | د اسحق ننګيال شعري منتخبات | دويم ۱۳۸۷ |

ج- ژباړنې:

- د ټولنپوهنې له نظره: په افغانستان کې د واک جوړښتونه
  دپوهنوال روستار تره کي اثر دویم ۱۳۸۷
- .د افغانستان فرهنګي میراثونو ته یوه کتنه
  د نینسي دوپرې اثر دویم ۱۳۸۷
- په افغانستان کې د جګړې جنایتکارانو محاکمه
  د پوهنوال روستار تره کی اثر دویم ۱۳۸۷

د- یونلیکنې:

- د اماراتو سفر د اماراتو یونلیک دویم ۱۳۸۷
- که یون دی یون دی د اروپا یونلیک لومړی ۱۳۸۷
- دپنتاګون ترڅنډو د امریکا یونلیک لومړی ۱۳۸۷

هـ- څېړنې او شننې:

- د محمدګل خان مومند اند و ژوند ته یوه لنډه کتنه دویم ۱۳۸۷
- استاد زیار د پښتني فرهنګ یو ځلاند ستوری دویم ۱۳۸۷
- دکابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي پښتو کتابښود دویم ۱۳۸۷
- د افغانستان فرهنګ ته اوښتي زیانونه دویم ۱۳۸۷
- د پښتو شعر هندسي جوړښت شپږم ۱۳۸۷
- له افغانستانه د مسلکي کادرونو د فرار عوامل دویم ۱۳۸۷
- ساینسي پرمختیاوې دویم ۱۳۸۷
- بېړنۍ لویه جرګه ولسواکي او زورواکي دویم ۱۳۸۷
- اندیال خوشال لومړی ۱۳۸۷
- هیله د خپلو سریزو په لمن کې لومړی ۱۳۸۷
- کلتوري یون لومړی ۱۳۸۷

- فرهنګي فقر لومړی ۱۳۸۷
- مرکه او مرکې لومړی ۱۳۸۷
- خوشال په خپل ایډیال لومړی ۱۳۸۷
- دکتابونو په وړمو کې لومړی ۱۳۸۷
- افغانستان په سیاسي کړلېچ کې لومړی ۱۳۸۷
- پښتو لیکنی سمون لومړی ۱۳۸۷
- اوسنۍ رسنۍ لومړی ۱۳۸۷
- کهڼریوال ماته وخوري؟ لومړی ۱۳۸۷

خدای (ج) دې استاد یون ته ډېر عمر ورکړي او جرئت دې ورته هم تاند لري، الله(ج) دې دی له هر ډول بدو بلاوو وژغوري، په فرهنګي کارو زیار کې ورته د نور زغم او اوسېلې هیله لرم.

په درناوي
وفاالرحمن وفا
کابل-افغانستان

# də kitābuno pə wagmo ke

**(In the breeze of the books)**

By:

M. Ismael yoon

د خپرونو لړ: (۲۷)


ISBN 978-9936-500-26-6